سَمِعتُ رسُولَ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم يَقُولُ نَضَّرَ اللهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا شَيْئًا فَبَلَّغَهُ كَمَا سَمِعَهُ. مرقات ج ا ص ٤٤٣

ابن مسعود ﷺ فرمايي چي ما دنبي كريم ﷺ څخه اوريدلي دي چي ده مبارك فرمايل چي الله ﷻ دي هغه شخص منور و ګرځوي كوم چي زما څخه خبره واوري او پر هغه طريقه يې (نورو ته) ورسوي.

**حضرت نبي كريم ﷺ فرمايلي دي:**

كوم سړى چي زما وامت ته دفائدې رسولو په خاطر د امر دين

# څلوېښت احاديثه

په ياد كړي نو الله تعالى ﷻ به هغه د قيامت په ورځ فقيه را پورته كوي او د قيامت په ورځ زه دده شفاعت كونكى او (د ده پر طاعاتو باندي) شاهد ګرځم.

**تاليف**

مولوي احمد ګل كندهاري

فاضل تخصص علامه بنوري ټاون كراچي

**ناشر**

اشرفيه مدرسه لومړى ناحيه كندهار

موبائل نمبر ۰۷۰۰۳۰۸۶۵۶

## دکتاب پېژندنه

د کتاب نوم : ثلوېښت احـــاديثه

د کتاب مؤلف : مفتي احمدگل کندهاري

فاضل تخصص علامه بنوري ټاون

تصحيح کونکی : مولوي محمدرسول صاحب

کمپوز : محمدرسول سعيد

۰۳۰۰۳۸۹۰۲۹۸ (۰۰۹۲)

تعداد : ۱۰۰۰ عدد

چاپ : لومړی ځل چاپ

ناشر : جامعه اسلاميه اشرفيه

لومړی ناحيه کندهار

## د نوموړي کتاب فهرست

**﴿۱﴾ د اعمالو دار ومدار پر نیتو باندي دي** :

﴿ اِنَّمَا الاَعْمَالُ بِالنِّيَاتِ﴾ [1]

**ترجمه** : د ټولو کارو اعتبار په نیتو سره دی، یعني د عمل ثمره او اعتبار په نیت سره دی .

**لغات** : اَعْمَالْ جمع دعمل ده، او عمل کار ته ویل کیږي .
نِیَاتْ : جمع دنِیَةٌ، د زړه قصد او ارادې ته ویل کیږي .

**فضیلت** : امام شافعي رح دا حدیث دعلم دریمه حصه بولي وجه داچي اعمال پر درې قسمه دی : د زړه عمل، د ژبې عمل او د اعضاوو عمل .[2]

علامه ابن دقیق العید فرماي چي داحدیث علماؤو په ثلث الاسلام سره ملقب کړی دی .[3]

صاحب ابوداؤد سلیمان ابن اشعث ستیجستاني رح نصف فقه بللی دی .[4] حضرت امام صاحب رح داحدیث شریف څلورمه د علم بللی دی .

---

[1] عَنْ اَمير المؤمنين اَبي حفص عُمَر بن الخَطاَب ﷺ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ لاَ انَمَّاالاَعْمَالُ........ الخ . رواه شيخين.
[2] فتح البَاري ،مرقات ج ١ صـ ۴۲.
[3] فتح الباري ج ١ صـ ١٠.
[4] فتح الباري ج ١ صـ١١.

عبدالرحمان بن مهدي رح فرمايي چي ځوك دكتاب د تصنيف اراده وکړي هغه شخص دي په دغه حديث سره شروع کوي .

دگناه کار په نيت سره نه سميږي .

عبادتونه دوه قسمه دي : (۱) مقصودي عبادتونه لکه کلمه ، لمونځ، روژه، حج او زکات ددغه مقاصدو اصل صحت پر نيت باندي موقوفه دی . (۲) هغه عبادتونه چي د بل عبادت لپاره واسطه وي لکه اودس، پوښيده دعورت او داسي نور، ددغه اعمالو ثواب په نيت سره زياتيږي اصل صحت يې په نيت پوري نه دی تړلی .

په يوه عمل کښي ډير نيتونه کيدلای سي پرنيت باندي يې ثواب دی لکه نکاح : نيت داتباع سنت، نيت د اولاد صالح، نيت دځان دپاکدامنۍ وغيره پر نيت باندي ثواب سته .

**د حديث د راوي مختصر حالات (خليفه راشد) :**

د حديث راوي حضرت عمر بن خطاب ﷺ دی، کنيت يې ابوحفص دی نسبا قريشي دی، تر ۴نارينوو او ۱۱ ښځو وروسته دنبي کريم ﷺ د دعاء په برکت په اسلام مشرف سوی دی، حضرت ابوبکر صديق ﷺ په خپل ژوند کښي دی مبارك خليفه گرځولی دی . د حضرت مغيره غلام ابولؤلؤ د چهارشنبې په ورځ ۲۶ذوالحجه ۲۳هـ په مدينه

منوره کي دسهار دلمانځه تر مخه دی مبارك په خنجر ووهی او په اول محرم باندي ده مبارك ددنيا څخه سترگي پټي کړې، دده مبارك عمر ۶۳کاله وو، د خلافت موده يې لس کاله شپږ مياشتي وه ، حضرت صهيب ﷛ د جنازې لمونځ ورکړی او دنبي کريم ﷺ په حجره مبارکه کي دفن دی .

روايات احاديث دده مبارك څخه ۵۳۹ دی .



**《۲》 د انسان فضیلت پر نورو باندي په تقوی او عمل صالح سره دی :**

《 اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَهُ اِنَّكَ لَسْتَ بِخَيْرٍ مِّنْ اَحْمَرَ وَلاَ اَسْوَدَ اِلاَّ اَنْ تَفْضُلَهُ بِتَقْوٰى[1] . 》

**ترجمه** : نبي کریم ﷺ و ابوذرغفاري رضی الله عنه ته وفرمایل چي ته نه يې بهتره پر سره رنګ والا (انسان) باندي او نه پر تور رنګ والا (انسان) باندي ،مګر دا چي ته بهتري پیدا کړې (پر بل انسان باندي) په تقوا سره .

**لغات** : اَحْمَرْ: سور رنګ ته وایې جمع يې اَحَامِرْده، او مؤنث يې حُمْرَاء ده .

اَسْوَدَ: دباب (س) څخه تورسوی مؤنث يې سُوْدَاء ده.

تَفْضُلَه : د باب (س) څخه باقي پاتیدل، د باب (ن) څخه بهتره کیدل.

بِتَقْوٰی: د الله جل جلاله له خوفه دهغه دفرمان موافق عمل کوي .

**تشریح** : په حدیث مقدسه کي یو قانون ذکر دی چي دانسان فضیلت پر ظاهري شکل وصورت باندي نه دی بلکه د

---

[1] مشکوة ج ۲ صـ۴۴۳.

فضیلت مدار پر دیني اخلاقو ،عمل صالح او تقوا سره دی ، په یو حدیث [1] کي ذکر دي چي عمل صالح او تقوی نه لري په نسب سره مخته نسي تللای چي فلان سید دی، فلان قریشي دي، البته وروسته تر عمل صالح او تقوی بیا په نسب سره ډیر مخته ځي ځکه چي بنیاد یې طلایې دی .

د تقوی درې مرتبې دي :

(۱) کمه مرتبه دتقوا داده چي د کفر او شرك څخه ځان وساتي .

(۲) میانه مرتبه د تقوی داده چي دگناه څخه دمنهیاتو څخه د شریعت مقدسه ځان ساتي .

(۳) اعلی او افضله مرتبه د تقوی داده چي د ذات الهي جل وعلا سره همیشه حضور لري . او دغیر الله څخه فارغه وي یعني فکر یې په غیر الله سره نه وي بند .[2]

**حالات مختصره ابو ذر** ﷛ :

نوم یې جندب، ابوذر یې کنیت او مسیح الاسلام یې لقب وو، په اول کي داسلام په مکه مکرمه کي یې اسلام راوړی دی، واقعه داسلام یې مشهوره ده په آخر د عمر کي یې رویښتان ټوله سپین سول، د غزوه خندق وروسته یې ټوله عمر د نبي کریم ﷺ په خدمت

---

[1] مشکوة ج ۱ صـ ۲۲.

[2] مرقات ج ۹ صـ ۳۹۳.

کنبې تیر کړی دی، تر مخه په قبیله غفار کنبې وو، حضرت ابوذر ﷺ فقیر،زاهد او تاریك دنیا وو او ډیري دردناکي واقعې یې دي ، دحضرت عثمان ﷺ په امر ده خپله مقام زبده اختیار کي هلته یواځي وو یوه کور والا ورسره وه، تر وفات وروسته یوه یمني قافله را روانه وه او په هغه قافله کي حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ وو هغه راغلی د غسل،جنازې او دفن کارونه یې ور دسره کړه ، د احادیثو روایتونه دده مبارك څخه ۲۸۱دي .



**﴿۳﴾ د سنت مقدسه اتباع لازمه ده .**

﴿ مَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ ﴾ [1]

**ترجمه** : کوم چا چي زما د طريقې څخه اعراض (سرغړونه) وکړه هغه زما څخه نه دی .

**لغات** : رَغِبَ د باب (س) څخه رُغْبَةٌ عَنْهُ، اعراض کول، رُغْبَةٌ فيْه ، خوښول .

سُنَّتِيْ : خصلت، عادت، طبيعت ، جمع يې سُنَنْ راځي .

**تشريح** : شريعت مقدسه د ذات الهي ﷻ او دنبي کريم ﷺ د حکم وروسته هيڅ قسم اختيار مؤمن ته نه دی ورکړی بلکه د الله جل جلاله او د نبي کريم ﷺ د حکم نه منلو په صورت کي نافرمانه او اعراض کونکی دی چي دا روګرداني سبب د ګمراهي ګرځي ، البته اعراض بيا فرق لري د فرضو څخه اعراض، دواجب څخه اعراض، دسنت مؤکده څخه اعراض، بيا دا اعراض دوه قسمه دی يو دادی چي انکار لري بل انکار نه لري عمل نه پر کوي تفصيل يې دادی : د فرض منکر کافر دی، دواجب او سنت مؤکده منکر فاسق دی او بيره د کفر پر سته، که د فرض

---

[1] مشکوة ج ۱ صـ۲۷.

انکار نه وي عملي يې ترك کړی وي دې ته فاسق وايي او بيره د کفر پر سته لکه لمونځ نه کونکی ، دواجب تارك فاسق دی د سنت مؤکده تارك د نبي عليه السلام د شفاعت څخه دمحرومۍ مستحق گرځي او حرام قطعي ته نږدې عمل دی .[1]

حاصل دا چي اعراض د نبي کريم ﷺ د سنتو څخه سبب دگمراهۍ دی يا ډيره گمراهي يالږ، الله جل جلاله دي ټولو مسلمانانو ته اتباع دسنت نصيب کړي . آمين .

**حالات راوي حضرت انس رضي الله عنه :**

انس يې نوم او ابو همزه يې کنيت دی،دپلار نوم يې ابوطلحه دی، لس کاله يې دنبي کريم ﷺ خدمت کړی دی تر لس کاله تر مخه پيدا سوی دی، نبي کريم ﷺ چي مدينې منورې ته تشريف راوړی دده عمر لس کاله وو ابوطلحه رضي الله عنه نبي کريم ﷺ ته دخدمت لپاره پيش کړي او نبي کريم ﷺ قبول کړی ، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دی د بحرين عامل مقرر کړی . ۱۲۸۶ احاديث دده مبارك څخه نقل سوي دي . نبي کريم ﷺ ده لره د ډير مال،ډير اولاد، او د ډير عمر د دعاء سره دمغفرت دعاء کړې ده ، د اولاد ډير والی يې دومره وو چي ۹۸ اولاده ده مبارك په خپل لاس دفن کړي دي او زراعت اومالداري يې

---

[1] حسامي صـ ۵۹ . حاشية الطحطاوي صـ ۵۱.

په کال کي دوه فصله حاصلات کول اوهمدارنگه يې د اولاد کيفيت وو ، عمر يې هم اوږد وو ، ده مبارك به فرمايل چي دعمر څخه سترړى سوم اوس د مغفرت په اميد يم چي دنبي کريم ﷺ ددعاء اخري جز دى ، حضرت عمر رضي الله عنه دى مبارك بصرې ته د احاديثو او فقهي د معلم په صفت وليږي، په ۱۰۲هجري کال کنبي دى مبارك هلته وفات سو او همدى آخري صحابي وو .[1]



---

[1] روضة الطالبين صـ ۴۸۷.

**﴿۴﴾ د بدعت څخه ځان ساتل** :

﴿ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْ اَعَانَ عَلٰى هَدْمِ الاِسْلاَمِ﴾

**ترجمه** : كوم شخص چي د بدعتي تعظيم وكړى نو په تحقيق سره هغه د اسلام په نړولو كي كومك وكړى .

**لغات** : وَقَّرَ: دباب تفعيل څخه تعظيم كول .

بِدْعَة : نوى شى، جمع بِدَعٌ ده باب فتح څخه معنى ايجادول بيله نمونې يو شى جوړول .

هَدَمَ : د باب (ض) څخه ماتول نړول .

**تعريف بدعت** : بدعت په اصطلاح شرح كي هغه كار ته وايي چي په خير قرون په زمانه كي نه وي او سلف ( صحابه، تابعين تبع تابعين) د هغه وطرف ته دعمل كولو لپاره محتاج وي هغو دغه كار نه وي كړى اوس يې يو شخص د ثواب په نيت وكړي دغه عمل ته بدعت وايي لكه نفل لمونځ په جماعت باندي صحابه كرامو نه دى كړى سره د دې چي دوئ و دې ته محتاج وه چي عبادت په ښه طريقه باندي وسي چي ثواب يې ډير سي ، يا نور نوي كارونه چي

دغه تعریف پر صادق وي نو دغه ته بدعت وايې [1]. په بدعت شرعي کي حسن نسته بلکه هر فرد يې قبيح دی هم دغه قول د حضرت امام رباني رح دی په دغه مذکوره تعريف سره دانوی طرز د سکونت اسباب لکه الماری، کوربچې، فرش وغيره داخو هم د نبي عليه السلام په زمانه کي نه وه اوس سته نو دې ته بدعت نه وايې ولي د ثواب نيت نسته،همدارنگه وسائل لکه لمانځه ته په موټر کي تلل وغيره ، همدارنگه قيام مدارس، فنون صرف نحو وغيره ټوله دبدعت څخه وتلي دي دغه اعمالو ته بدعت نه ويل کيږي که څه هم د نبي عليه السلام په زمانه کي نه وه اوس سته او هم د ثواب په نيت دي مگر دبدعت تعريف نه پر صادقيږي په تعريف کي دبدعت داقيد ؤ چي دصحابه کرامو ﷺ به ودغه عمل ته ضرورت وو ، او دغه فنونو وغيره ته ددوئ مبارکانو ضرورت نه وو ځکه دي ته بدعت نه وايي که څه هم دثواب په نيت وي .

نو دهر عمل چي دبدعت تعريف صادق سي دغه عمل ته بدعت ويل کيږي او دغه سړی ته بدعتي ويل کيږي مثال لکه په بعضو ځايو کي تر اذان دمخه او وروسته په زوره اواز صلاتونه ويل، او همدارنگه په هر ملك کي مختلف بدعتونه

---

[1] توضيحات شرح مشکوة ج ۱ صـ ۳۶۰.

وي په شريعت مقدسه کي هيڅ اصل نلري ، حق تعالی ﷻ دی
ټوله مسلمانان ددغه ضلالت او گمراهي څخه وساتي .

**تشريح** : د بدعت کونکي د تعظيم مختلف قسمونه دي مثلا چي دی راسي دده لپاره ولاړ سي يا په مجلس کي يو ښه ځای ورکول يا خدمت يې کول وغيره .[1]

**هدم الاسلام** : د بدعتي تعظيم د بدعت تعظيم دی او دبدعت په تعظيم کښي دسنت تحقير دی او دسنت تحقير داسلام و عمارت ته نقصان دی .[2]

**خرابي دبدعت** : حضرت امام مالك رح فرمايي چي چا بدعت وکړی نو دی داسي پوهيدلی دی چي نبي کريم ﷺ په رسالت کي (نعوذباالله) غلطي کړې ده (دغه زما عمل ثواب لري ده مبارك نه دی کړی نه يې امر کړی دی) .

بله خرابي د بدعت داده چي بدعتي سړی ددغه عمل څخه توبه نه کاږي ولي دی يې ثواب بولي هغه په شريعت کي هيڅ اصل نه لري ، په يوه روايت کي ذکر دي چي ابلس وويل چي زه خلگ په گناه هلاك کړم ، دوئ زه په توبه

---

[1] توضيحات شرح مشکوة ج ۱ صـ ۳۶۰.

[2] مرقات شرح مشکوة ج ۱ صـ ۳۹۴.

هلاك كړم وروسته بيا ما په دغسي عمل اخته كړه چي توبه نه كاږي .[1]

بل دا چي : د بدعت په ذريعه سره سنت پاتيږي ځكه چي ته كوم كار كوې هم په دغه كار كښي سنت طريقه هم سته هغه ستا څخه پاته سول . الله ﷻ دي مسلمانان د بدعاتو څخه وساتي ، د هر نيك عمل په كولو كي به پوښتنه كوئ چي په شريعت كي اصل لري كه يا ؟



---

[1] الترغيب والترهيب .

## ﴿۵﴾ توبه گناه محوه کوي

﴿عَنْ عَبْدِاللهِ بِنْ مَسْعُوْد قاَلَ : قَالَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اَلتَّائِبُ عَنِ الذَّنْبِ كَمَنْ لاَذَنْبَ لَهُ﴾ [1]

**ترجمه** دحضرت عبدالله رضي الله عنه **څخه** روايت دی چي رسول اللهﷺ وفرمايل: توبه کونکی د گناه څخه داسي دی لکه گناه چي يې نه وي کړې.

**لغات** : اَلتّائِبُ : توبه کونکی، تاب دباب نَصَر څخه: متوجه کيدل .

اَلذَنْب :گناه، جمع د ذُنُوْب ، جمع الجمع يې ذُنُوبَات.

**تشريح** : ملا علی قاري رح فرمايې چي بنده دتوبه په ذريعه باندي ذات الهي جل جلاله ته رجوع کوي نو د دوو حالاتو څخه به خالي نه وي اول دا چي گناه بالکل محوه کړي ، دوهم دا چي ثواب ورکول کيږي ليکن که گناه يې محوه نسي په دواړو صورتو کي ثواب لري . مولانا محمد منظور نعماني رح فرمايې د توبې په ذريعه بنده دالله جل جلاله محبوب گرځي او د گناهو داغ يې هم ليري کيږي لکه حديث(كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ اُمُّهُ ).

په حديث شريف کي ذکر دی ټوله بني آدم خطاوي لري ليکن

---

[1] مشکوة ج ۱ ص ۲۰۶.

بهترين خطاكونكى هغه دى چي توبه كونكى وي .[1]

**د توبي لپاره شرائط** : علامه آلوسي په تفسير روح المعاني کي او شيخ محي الدين ابو ذكريا نووي په شرح مسلم کي د توبي ۳ شرائط ذکر کړي دي :

(۱) د گناه څخه پوره جلا سي .

(۲) پر گناه ندامت قلبي وي ،د زړه د اخلاصه پر دغه گناه پښېمانه وي .

(۳) پوخ عزم يې وي چي بيا داسي گناه نه کوم .

**حالات راوي حضرت عبدالله بن مسعود** ﷺ:

نوم يې عبدالله کنيت يې عبدالرحمان دی، مسعود يې د پلار نوم وو، ام عبد يې د مور نوم وو . په اول کي يې چوپاني کول تر يو واقعي وروسته مسلمان سو بيا يې ټوله زندگي د نبي کريم ﷺ په خدمت کي وقف کړه ، يو ځل يې حبشې ته او بيا يې مدينې منورې ته هجرت کړی دی . دی مبارك رئيس مفسرين دی د فقه حنفي دار ومدار دده مبارك پر رواياتو دی . تعداد د حديثو يې۸۴۸ دی .

عمر مبارك يې تر شپيتو کالو زيات دی په ۲۳هـ کال کي وفات سوی دی، حضرت عثمان ﷺ د جنازې لمونځ ورکړی، دحضرت عثمان بن مظعون ﷺ په بغل کي په جنت البقيع کي دفن سوی دی .

---

[1] مشكوة ج ۱ صـ۲۰۴.

**﴿۶﴾ د بدو څخه راګرځول** :

﴿ مَنْ رَاٰى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَاِن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، فَاِن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ، وَذٰلِكَ اَضْعَفُ الاِيْمَانِ﴾[1]

**ترجمه** : کوم څوك چي ستاسو څخه يو بد کار ويني نو هغه دي په لاس سره دا بد کار منع کړی، که ده دومره طاقت نه درلودی نو بيا دي يې په ژبه سره منع کړي ، او که يې دومره طاقت هم نه درلودی نو بيا دي يې په زړه کي بد وبولي او دغه (آخري درجه) د ايمان هغه کمزوري درجه ده.

**لغات** : فَلْيُغَيِّرْهُ : بدلول .

اَضْعَفُ: ډير کمزور، ضِعَافٌ او ضُعَفَاءُ يې جمع ده.

مُنْكَرْ : شرعي بد . بيده : په لاس سره .

فبقلبه : په زړه سره .

فبلسانه: په ژبه سره .

**تشريح** : په دغه حديث شريف کي د ايمان دري درجې ذکر سوي دي :

اول : داچي غلط کار ويني نو په لاس دې منع کوي مګر

---

[1] عن ابي سعيد الخدري ﷺ عن رسول الله ﷺ قال مَنْ رَاٰى مِنْكُمْ مُنْكَرًا ..... الخ مشكوة ج ٢ صـ ٤٣۶.

دا منع كول شرائط لري هغه دا چي دی به قدرت لري مثلا د كور مشر، استاذ، آمر وغيره وي .

دوهم : داچي يو غلط كار ويني په خوله به يې منع كوي ليكن ددغه منع كولو لپاره ۵ شرطونه په فتاوى عالمگيري كي راوړي دي .[1]

دريم : چي يو بد كار ويني خپله به مخ ځيني اړوي او په زړه كي به بد ځيني وړي كه يې په زړه كي هم بد نه ځيني وړل نو دده په ايمان كي شك سته .

**حكم دمنع** : كه حرام كار وو منع يې واجب ده كه په شريعت كي يو شی واجب وي امر يې هم واجب دی كه سنت وي امر يې هم سنت دی كه فرض وي نو امر يې هم فرض دی، مگر دا قانون هغه وخت دی چي دمخاطب څخه ستا دا يقين وي چي دی خبره قبلوي كه دا يقين نوو نو بيا يې ويل واجب نه دی بل داچي دا منع هغه وخت واجب ده چي دفتنې او فساد بيره نه وي كه د فتنې او فساد احتمال وو نو بيا به نه ورته وايي .

علامه قطب الدين په شرح دمشكوة كي وايې : چي امر په

---

[1] فتاوى عالمگيري باب كراهية صـ ۳۵۳ ج ۵ .

نیکو سره کول او د بدو څخه راګرځول یوائې دحاکم کار نه دی بلکه دهر نارینه،ښځینه، او غلام کار دی .[1]

په سورة انفال ۲۵ آیة کي هم وضاحت دی چي دهغه دفتنې څخه ځان وساتئ چي ظالمانو لره خاص ده ، یعني که تاسو د بدو څخه منع ونه کړئ دغه فتنه او مصیبت پر تاسو هم واقع کیږي ( که څه هم تاسي صلحاء او نیکان یاست) .

**حاصل** داچي د بدو په منع کولو کښي به سستي نه کوئ که نه دا نه منع کولو والا هم په عذاب مبتلا کیږي .[2]

په احادیثو مبارکوو کښي بله خرابي د نه منع کولو دا ذکر سوې ده چي کوم عذاب پر ګنهکار راځي هغه عذاب پر نه منع کولو والا باندي هم راځي ، او بیا د دغه نه منع کولو والا دعاء د عذاب د دفع لپاره هم نه قبلیږي .[3]

اول به اصلاح د خپل کور څخه شروع کوئ او خپل کور والا به د بدو څخه راګرځوئ . الله ﷻ دي مسلمانانو ته د ځان، کور او ټولو اصلاح په ښه طریقه ورنصیب کړي .

---

[1] مظاهري ج ۱ صـ ۶۴۷.

[2] سورة الانفال آیة ۲۵.

[3] مرقات ج ۹ صـ ۳۳۰.

**﴿۷﴾ د الله ﷻ رضا مندي د مور وپلار په رضامندي کي ده** :

﴿ رِضَی الرَّبِّ فِيْ رِضَی الْوَالِدِ وَ سَخَطُ الرَّبِّ فِيْ سَخَطِ الْوَالِدَ ﴾ [1]

**ترجمه** : د الله ﷻ رضامندي د پلار په رضا مندي کښې ده او د الله ﷻ ناراضي دپلار په ناراضي کي ده .

**لغات** : رَضِیَ : خوشحاله کیدل.

سخط : ناراضه کېدل .

سوال : په دغه حدیث کښې دپلار ذکر سته دمور ذکر ولي نسته ؟

جواب : په بعضو روایاتو کي ذکر دي چي دمور حق زیات دی د ۳ وجوهاتو پر بناء، لهذا چي دپلار دومره حق وي نو دمور په طریقه اولی پکښې دخل دی ځکه چي هغه زیاته حقداره ده .

په فتاوی هندیه کښې راغلي دي چي په احترام اوتعظیم کښې پلار د مخه دی او په خدمت او نعمتو ورکولو کي مور د مخه ده . [1]

---

[1] عن عبدالله بن عمر قال : قال رسول الله ﷺ رضَی الرّبِّ .... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۱۹.

په یو حدیث شریف کښې ذکر دي چې نبي کریم ﷺ فرمايي : که یو نیك اولاد مور وپلار ته یا یواځي یوه ته په نظر د رحمت وګوري الله ﷻ ددغه کتلو په وجه د حج مقبول ثواب ورکوي ، صحابه کرامو وفرمایل چې که یو شخص د ورځي سل واري ورته وګوري نو هم دسلو حجو ثواب ورکوي؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل : هو ، الله اکبر و اطیب .[2]

په یوه حدیث شریف کښې د یو صحابي پر سوال باندي نبي کریم ﷺ وفرمایل چي : هو پس له مرګه هم ستا پر ذمه باندي د مور پلار حق سته :

(۱) د دوئ لپاره دعاء اومغفرت غوښتل .

(۲) دوئ چي دچا سره وعده کړې وي یا یې جائز وصیت کړی وي هغه پوره کول .

(۳) هغه دوستان چي د مور وپلار په واسطه یې قرابت وي د هغو سره صله رحمي کول او د دوئ د شناختوو سره د شریعت په حدودو کي احترام او عزت ورکول .[3]

---

1 فتاوی عالمګیري ج ۵ صـ ۳۶۵.

[2] مرقات ج ۹ صـ ۱۵۹.

[3] مرقات ج ۹ صـ ۱۵۱.

(۴) نبي كريم ﷺ فرمايي كه چا دمور وپلار يا دواړو زيارت د جمعې په ورځ كاوه دغه شخص ته به بخښنه وسي او دالله ﷻ په نزد به په نيكانو كښي حساب سي . حق تعالى ﷻ دي ټولو مسلمانانو ته دمور اوپلار خدمت او احترام ور نصيب كړي. آمين يارب العلمين

**د حضرت ابن عمر ﷺ مختصر حالات** :

نوم يي عبدالله كنيت يي ابو محمد دى، د حضرت عمر ﷺ مبارك زوى دى تر حضرت عمر ﷺ د مخه يي ايمان راوړى دى هميشه به دنبي كريم ﷺ په خدمت كي وو ، دامام احمدرح د مذهب د احكامو بناء دده مبارك پر اقوالو ده.

په ۶۵هجري كال كي په تسطاط نامي ځاى كي وفات سوى دى، دجنگ په وجه خلگ دباندي نسواى راوتلاى ځكه يي دى مبارك په كور كي دفن كړى .

۷۰ احاديث دده مبارك څخه را نقل سوي دي .



**﴿۸﴾ د اولاد حق پر مور اوپلار باندي** :

﴿ مُرُوْا اَوْلاَدَكُمْ بِالصَّلٰوةِ وَهُمْ اَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ وَاضْرِبُوْهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ اَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِيْنَ وَ فَرِّقُوْا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ.﴾ [1]

**ترجمه** : تاسي خپل اولادو ته دلمانځه حکم کوئ کله چي دوئ د اوو کالو وي، او دوئ دلمانځه دنه کولو په سبب وهئ کله چي دوئ دلسو کالو وي ، او په دغه وخت کي د دوئ د پروتي بسترې سره ورجلا کړي .

**لغات** : اَبْنَاء: جمع دابَنْ په معنى د زوى.

اَلْمَضَاجِعْ: جمع مَضْجَعْ دخوب ځاى. ضجع د فتح څخه پر بغل پريوتل .

**تشريح** : په شريعت مقدسه کي د اولاد ډير حقوق پر پلار سته د پيدائش څخه تر بلوغ پوري اولاد مختلف حقوق لري البته دوه حقوق يې ډير مهم دي اول : د عقيدې جوړول، دوهم : دعبادات ور زده کول. په خاصه توګه دلته په حديث شريف کي دلمانځه متعلق بيان دى چي کوچنى کله د اوو کالو سي دلمانځه حکم ورته کوئ يعني اول به

---

[1] عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده قال : قال رسول الله ﷺ مُرُوْا اَوْلاَدَكُمْ .... الخ . مشكوة ج ١ صـ ٥٨.

يې ورزده كوئ بيا به يې جماعت ته بيایاست په هغه صورت كې چې دمسجد اداب يې زده وي . او كه يې عمر لسو كالو ته ورسيدی بيا يې هم دلمانځه پابندي نه كول نو وهل (دشريعت په حدودو كې ) به وركوي چې تر بلوغ تر مخه دلمانځه عادتي وګرځي، او دغه عادت دجماعت دلمانځه مفسرين فرمايې چې په قبر او حشر كښې د الله ﷻ د عذاب ځخه سبب د لوړ خلاصون ګرځي ، او كه چيري خدای مه كړه يو پلار د اولاد اوماتحت كوم ځوك چې وي دلمانځه اوعقيدې او نورو ديني امورو متعلق پلټنه نه كوي د آخرت په ورځ دده ځخه سوال كيږي .

په حديث شريف كې راغلي دي چې (اَلاکُلّکُمْ رَاعٍ الخ ) د هر سړي ځخه د هغه چاپوښتنه كيږي چې دده تر سرپرستۍ لاندي وي او ددغه كوچني كه عقيده خرابه سول يا يې ترك دعباداتو كاوه سبب دخرابۍ يې پلار كيږي ځكه چې ده كوښښ نه دی كړی او كه يې كوښښ وكړی ليكن دكوښښ سره اولاد خراب سو بيا پر پلار باندي ګناه اوعذاب نسته ، او داولاد د كوچنی والي حقوق زموږ په رساله (تحسين النكاح) كې بايد وكتل سي .

﴿۹﴾ **د ښو خلګو ناسته** :

﴿ وَالتَّوَدُّدُ اِلَی النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ ﴾ [1]

**ترجمه** : د ښو خلګو سره شناخت کول نیم عقل دی .

**لغات** : اَلتّوَدّدُ: محبت کول، شناخت کول .

اَلنّاسُ: خلګ .

اَلْعَقْلُ : هغه نور چي غیر حسي شی په محسوس سي، عُقُولْ یې جمع ده د ضرب د باب څخه ده معنی عقلمند کیدل .

**تشریح** : دښو خلګو سره شناخت نیم عقل دی په دې خاطر چي یو ښه مشوره درکوي ددین یا دنیا متعلق او پوره هوښیاري په دنیا کي داده چي سړی د حلال کسب کوښښ کوي چي حلال رزق پیدا کړي دا پوره عقل مندي ده او د آخرت لپاره په عبادتو کي د اخلاص کوښښ کوي د اخلاص دوه رکعته عبادت تر زور رکعاتو بې اخلاصه افضل دی .

او همدا رنګه په حدیث شریف کښې راغلي دي چي که

---

[1] عن ابن عمرؓ قال: قال رسول اللهﷺ الاقتصاد في النفقة نصف المعیشة والتودد الی الناس نصف العقل وحسن السوال نصف العلم . مشکوة ج ۲ صـ ۴۲۰.

چيري سم صالح همنشينه نوو نو يوازي به ژوند كوي.[1] ځكه چي بد همنشينه په عرف، عادت اوشريعت كي لوی دتباهۍ سبب دی .

امام غزالي رح فرمايې چي : سړی شناخت د يو چا سره كوي نو دپنځو خبرو مراعت به كوي :

(۱) عقلمند به وي ځكه دبې عقلۍ اثر يې پر ملگري لويږي.

(۲) د ښو اخلاقو خاوند به وي .

(۳) فاسق به نه وي .

(۴) بدعتي به نه وي (چي په دين كي نوي خبري پيداكوي)

(۵) محب د دنيا به نه وي .[2]

حضرت امام فخر الدين رازي رح فرمايې چي هر مجلس تاثير لري د ۸ قسمه خلگو ناسته ۸ قسمه شيان پيداكوي:

1. د اغنياؤو سره ناسته حب د دنيا پيداكوي ، هغه اغنياء چي حب د دنيا لري ځكه حب د دنيا د هري خطا سر دی او په انسان كي ناشكري پيداكوي .
2. د فقراؤو سره ناسته شكر په انسان كي پيداكوي .

---

[1] مشكوة ج ۴صـ ۴۱۴

[2] احياء العلوم ج ۲ صـ ۲۴۶.

3. د سلطان سره ناسته سختي د زړه،تکبر اومحبت د منصب پيداکوي.
4. د ښځو سره بې اندازې ناسته جهل اوشهوت پرستي پيداکوي.
5. د کوچنيانو سره ناسته په انسان کي بازي اومخسرې پيداکوي.
6. د فاسقينو سره ناسته په انسان کي دلاوري پر گناهو پيداکوي.
7. د علماؤو سره ناسته شوق پر طاعت باندي پيداکوي
8. پر علم باندي دعمل کونکو علماؤو سره ناسته دعلم زياتوالي پيدکوي.[1]

امام رباني رحمه الله فرمايي چي د اولياؤو سره ناسته کبريت احمر دی ، دآخرت ياد او دالله ﷻ سره محبت پيداکوي.حضرت مولانا رومي رح فرمايي :[2]

همنشين اهل معنی باش تا | هم عطا يابي وهم باشي فتا
گر تو سنگ صخره مرمر شوي | چون بصا حبدل رسي گوهر شوي

---

[1] تفسير کبير ج ۱ صـ ۲۰۱.
[2] مثنوي ج ۱ صـ ۲۶، ۲۱

**﴿١٠﴾ د يوه مؤمن پر بل مؤمن حقوق :**

﴿ لِلْمُؤْمِنِ عَلَى الْمُؤْمِنِ سِتُّ خِصَالٍ يَعُوْدُهُ اِذَا مَرِضَ وَيَشْهَدُ اِذَا مَاتَ وَ يُجِيْبُهُ اِذَا دَعَاهُ وَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ اِذَا لَقِيَهُ وَيُشَمِّتَهُ اِذَا عَطَسَ وَيَنْصَحُ لَهُ اِذَا غَابَ اَوْ شَهِدَ. ﴾ [1]

**ترجمه** : د يو مؤمن پر بل مؤمن باندي شپږ حقه دي :

(١) كله چي يو مسلمان ناروغ سي بل به يې پوښتنه كوي.

(٢) كله چي مسلمان مړ سي په جنازه كي به يې گډون كوي

.(٣) كله چي ده ته دميلمستيا بلنه وسي ميلمستيا به قبلوي

(٤) كله چي يو دبل سره يوځاى سي نو سلام به ور اچوي.

(٥) كله چي يو مسلمان و ترچي (او الحمد لله ووايي) د هغه جواب به وركوي (په يرحمك الله سره) .(٦) يو مؤمن به دبل مؤمن خير خواه وي كه دا بل مؤمن حاضر وي كه غائب.

**لغات** : خِصَال : جمع دخَصْلَة ده .

يَعُوْدُه : دنَصَرَ دباب ځخه معنى پوښتنه دمريض كول.

يَشْهَد : دسَمِعَ دباب ځخه معنى حاضريدل ،شاهدي وركول . دباب مفاعله ځخه : ليدل .

---

[1] عن ابي هريرة ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ للمؤمن ..... الخ . مشكوة ج ٢ صـ ٣٩٧.

**يُجِيبُه** : د باب افعال څخه معنی قبول ، جواب ورکول.
**دَعَاه**: د نصر دباب څخه معنی بلنه .
**لَقِيَهُ**: د سمع دباب څخه معنی يو ځای کيدل .
**يُشَمِّتُه** : دتفعيل دباب څخه معنی د ترچي والا جواب ورکول.
**يَنْصَحُ**: د فتح دباب څخه معنی يې خير خواهي ده .
**تشريح** : يو مؤمن پر بل مؤمن باندي ۶ شرعي حقوق لري :

1. د قريبانو، دوستانو او همسايګانو د مريض پوښتنه به کوي . په حديث شريف کي ذکر دي چا چي د مريض پوښتنه وکړه سهار يا ماښام اويا زره ملائکي دده دمغفرت دعاء کوي ، که سهار پوښتنه وکړي تر ماښامه دعاء ورته کوي او که ماښام پوښتنه وکړي نو تر سهاره پوري دعاء ورته کوي .
2. د يو مؤمن ميلمستيا به قبلوي ، ميلمستيا که دواده وي که د بل شي چي انسان ته عذر نه وي دا مسنون طريقه ده چي قبلوي به يې او بيله عذره نه قبلول په حديث شريف کي سخت منع راغلې ده ، البته که ده لره عذر وو نو بيا معاف دی .

که چيري د واده يا ميلمستيا په ځای کي غير شرعي

کارونه وه لکه ساز، عکسونه ، فلمونه وغیره او دی خبر وي نو بيا به هغه ځای ته نه ورځي او که چيري دی ناخبره ورغلی وروسته معلومه سول چي دلته نارواوي دي نو دغه ورتلونکی که عام سړی وي نو حکم دادی که يې دمنع طاقت پر شرعي طريقه درلودی منع به يې کوي که يې طاقت نوو نو د ډوډۍ تر وخته به کښېني او که په ډوډۍ کي هم دغه نارواه عمل وي نو بيا به ډوډۍ هم نه خوري .
او که چيري دغه ورتلونکی عالم وي نو دغه عالم لره د ډوډۍ تر وخته ناسته هم نه ده رواه يا به يې منع کوي او که يې نسو منع کولای نو بيا به ځي ، نن سبا اکثره ودونه پر دغه طريقه دي ډير احتياط پکار دی . [1]

3. سلام به ور اچوي ، ددې هم تفصل تير سوی دی .
4. که يو مؤمن وترچي او الحمدلله ووايې نو پر اوريدونکي باندي واجب کفايې دي چي جواب به په يَرْحَمُكَ اللهُ ورکوي تر درو ځلو پوري .
5. که چيري يو مؤمن مړ سي جنازې ته به ورځي داهم واجب کفايې دی .

---
[1] الفتاوى الهندية ج ٥ صـ ٣٤٣. هداية ج ۴ صـ ۴۵۳.

6. يو مؤمن به دبل مؤمن خير غوښتونکی وي که هغه حاضر وي که غير حاضر ، کوم شی چي دځان لپاره خوښوي هغه به د بل مؤمن لپاره هم خوښوي، او کوم شی چي د ځان لپاره بد ګڼي هغه به دبل مؤمن لپاره هم بد ګڼي .[1]

**د حضرت ابوهريرة ﷺ مختصر حالات :**

نوم يې عمر، ابوهريرة يې کنيت دی . خانداني نوم يې عبدالشمس وو نبي کريم ﷺ يې نوم په عمر ور بدل کړ. د خيبر په کال مسلمان سو ، دنبي کريم ﷺ سره به هميشه ملګری وو ، وخت دملاقات يې کم مګر شوق د احاديثو يې ډير زيات وو . (۵۳۷۴) احاديث دده مبارک څخه نقل سوي دي

په سنه ۵۱ هـ کي د ۷۸ کالو په عمر يې وفات کړی دی، وليد دجنازې لمونځ ورکړی دی .

*رضي الله عنهم اجمعين .*

---

[1] مظاهر حق ج ۴ صـ ۳۰۸.

**﴿۱۱﴾ د يو مسلمان د بل مسلمان څخه تر درو ورځو زيات اړيکي شکول جواز نه لري** :

﴿ لاَيَحِلُّ لِمُسْلِمٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلٰثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلٰثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ ﴾ [1]

**ترجمه** : هيڅ مسلمان لره دا جائز نه ده چي هغه د خپل مسلمان ورور سره تر درو ورځو زيات قطع تعلق وکړي که چا دغسي وکړه او پر همدغه خوابدتيا مړ سو نو هغه به جهنم ته داخل سي .

**لغات** : يَهْجُرُ: پريښودل، قطع تعلق.

اَخٌ: ورور.

اَلنّارُ: اور.

**تشريح** : شريعت مقدسه د انسان د طبيعت مراعت کړی دی چي په درې ورځي کي دانسان درد خلاصيږي او يا کميږي . البته د يو ديني غرض په خاطر تر درو ورځو زيات خوابديدل هم جواز لري مثلا يو سړی بې عقيدې وي يا بې دينه وي ليکن ددغه خوابدۍ په وخت کي به کناره کشي هم پر سمه طريقه وي يعني غيبت ياعيب جويې به يې نه

---

[1] عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : لايحل ...... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۲۸.

کوي ، او دغه خوابدتیا به د نفس په خواهش نه وي .
خرابي د قطع تعلق : یوه سزا خو په دغه حدیث کي ذکر ده‌چي امام توربشتي رح فرمایې چي دخول د اور یې پر ځان واجب کړی .[1]
په یو بل حدیث شریف کي راغلي دي : چي د دوشنبې او جمعې په ورځ دجنت دروازې خلاصي وي او په بل روایت کي راغلي دي چي په دغه ورځو کي پر ذات الهي ﷻ باندي اعمال پیشیږي نو ذات الهي ﷻ د هر مؤمن مغفرت کوي مگر دغسي دوه مؤمنان چي عداوت سره لري مغفرت یې نه کیږي .[2]
او په یو بل روایت کي ذکر دي چي د روژې اعمال یې هم معلقه پاته وي تر څو چي خوابدتیا د منیځه ولاړه نسي .
په یو حدیث شریف کي ذکر دي چي د دوو خوابدو په مینځ کي چي هر یوه اول سلام واچوی هغه شخص بهتره دی او که یوه درې ځله سلام واچوی مگر بل جواب ورنه کړی نو دخوابدتیا ټوله گناه پر جواب نه ورکونکی ده .[3]

---
[1] مرقات ج ۹ صـ ۲۳۸.
[2] مرقات ج ۹ صـ ۲۳۴.
[3] مرقات ج ۱ صـ ۲۳۸.

تنبیه : که چیري یو شخص سره دطبعیت موافقت نلري نوتعلق دي ورسره کم کړي، داسي نه چي سلام ورسره بند کړي دا سخته گناه ده او همدا عمل زموږ په خلگو کي ډیر زیات سته . الله ﷻ دي ټولو مسلمانانو ته ددغه گناه څخه نجات ور په برخه کړي . آمین.

﴿۱۲﴾ **رحم پر مؤمنانو باندي** :

﴿ لاَيَرْحَمُ اللهُ مَنْ لاَّيَرْحَمُ النَّاسُ[1] ﴾

**ترجمه** : الله ﷻ رحم نه کوي (کامل رحم) پر هغه چا باندي چي هغه پر خلگو باندي رحم نه کوي .

**لغات** : رَحِمَ : مهرباني کول، دباب سمع څخه دی .

**تشريح** :پر عامو مؤمنانو باندي به بل مؤمن شفقت، رحم او حسن ظن لري ، که چيري يو مؤمن په ناروا يا گناه اخته وي د اصلاح فکر به يې کوي په ښه اخلاقو سره به دغه گنهکار شخص د بدو څخه منع کوي لکه چي مخکي په حديث نمبر ۶ کي ذکر سول، او همدارنگه به په پټه الله ﷻ ته دعاء کوي چي يا الهي ته هدايت ورنصيب کړه ، مقصد دا چي هيڅ يو مؤمن ته به په حقارت او سپك نظر نه گوري.

په يو بل حديث مبارك كي ذكر دي : چي نبي كريم ﷺ فرمايي : يومؤمن به پر بل مؤمن ظلم نه کوي او نه به يې ذليله کوي او نه به يې سپکوالی کوي ځکه چي تقوا دلته

---

[1] عن جرير بن عبدالله قال : قال رسول الله ﷺ لايرحم ..... الخ . مرقات ج ۹ صـ ۱۶۱.

ده ،نبي کريم ﷺ زړه ته اشاره وکړه او دا اشاره يې درې ځله وکړه .[1]

لهذا لازمه ده چي څوك پر هر مؤمن شفقت ولري او دهر مؤمن عزت،قدر او احترام ولري د ايمانداری په خاطر .

زموږ ځيني خلگ د ځينو خلگو څخه دگناه په خاطر د هغه سپك والی کوي دا ښه کار نه دی بلکه د هغه د اصلاح کوښښ به کوي ، په سپك والی او بد وړلو سره نور هم دغه سړی د دين څخه متنفر کيږي .



---

[1] مرقات ج ۹ صـ ۱۷۰.

**﴿١٣﴾ پر ښځو باندې ترحم کول** :

﴿ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لاَيَفْرَكُ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً اِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلْقًا رَضِيَ مِنْهَاآخَرَ﴾ [1]

**ترجمه** : نبي کريم ﷺ فرمايي : چې يو مؤمن نارينه دې د مؤمني ښځې سره بغض نه کوي که چيري دده په نظر ددغه ښځې يو عادت يا خصلت بد اوناخوښه وي نو يو بل خصلت به يې بيا ښه اوخوښ وي .

**لغات** : يَفْرَكُ : دباب سمع څخه معنی يې بغض ده.

كَرِهَ : دسمع دباب څخه ناخوښه .

**تشريح** :يعني خاوند لره مناسبه نه ده چې د خپل کور والا څخه نفرت وکړي ځکه چې دانسان ټول عادات نسي سميدلای که يې اخلاق بد وي خو ښه اخلاق هم لري .

د فرك لفظ د ميړه او ښځې تر مينځ نفرت ته ويل کيږي .

خلاصه دا چې پر ښو اخلاقو به دې نظر وي او پر بدو اخلاقو به صبر اوتحمل کوي .

په يو بل حديث مبارك کي ذکر دي چې نبي کريم ﷺ فرمايي

---

[1] مشکوة ج ٢ ص ٢٨٠.

چي ښځه د پوښتنې د کاره هلووکي څخه پيدا ده سيده کيږي نه ، که يې ته سيده کوې نو ماتيږي او ماتېدل دښځي طلاق دی .

نبي کريم ﷺ فرمايې : استوصوا بالنساء خيرا ، دښځو متعلق چي ما کوم دخير وصيت کړی دی (چي د دوئ سره ښه کوئ) هغه وصيت قبول کړئ ، يعني ظلم، بې ځايه وهل بدسلوکي وغيره مه ورسره کوئ .[1]

په يو بل حديث شريف کي ذکر دی چي په تاسو کي بهترين شخص هغه دی چي د خپل اهل (کوروالا،کوچنيانو،دوستانو،خدمتګارانو) په حق کي بهترين وي .[2]

مګر زموږ پښتانه د الله ﷻ پر دغه کمزور مخلوق(ښځه) باندي څومره ډول ډول زيادتي او خيانتونه کوي يا په جوړه کي ښځي ورکوي يا يې خرڅوي وغيره .. دا ټوله اعمال دشريعت مقدسه او دنبي کريم ﷺ د طريقې څخه خلاف اعمال دی ، ددې نتيجه به په قبر اوحشر کي

---

[1] مشکوة ج ٢ صـ ٢٨٠.

[2] مشکوة ج ٢ صـ ٢٨١.

معلومیږي . نور د ښځي او میړه تر مینځ حقوق زموږ په رساله (تحسین النکاح) کي ملاحظه کولای سئ .

البته چي دښځي سره به صبر اوتحمل کوي دا یوازي په کورني ژوند کښي دي که چیري ښځي د شریعت څخه خلاف ورزي کول مثلا بې ستري وغیره نو بیا به یې نه پریږدي بلکه پابندي به پر لګوئ .

الله ﷻ دي ټول مسلمانان ددغه مظلوم قوم دحق تلفۍ څخه وساتي . آمین .



﴿۱۴﴾ **د نکاح فضیلت** :

﴿ اِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ فَقَدْ اِسْتَكْمَلَ نِصْفَ الدِّيْنِ فَلْيَتَّقِ اللهَ فِيْ نِصْفِ الْبَاقِيْ﴾ [1]

**ترجمه** : کوم بنده چي نکاح وکړي نو هغه نیم دین پوره کړی ، ده لره پکار ده چي دپاته نیم دین په باره کي دحق تعالی ﷻ څخه وبیریږي .

**لغات** : تَزَوّجَ: دباب تَفَعّل څخه، معنی یو ځای کیدل مگر دلته دنکاح په معنی دی. اِسْتَكْمَل : باب استفعال پوره کیدل.

نِصْفُ: نیم . اَلدِّيْن : په لغت کي لار او روش ته وایې ، او په اصطلاح کي اصولي احکامو ته وایې چي جزئیاتي پر بناء وي او هم دغه ته ملت وایې د کلیاتو،جزیاتو یا اصولو فروع مجموعې ته شریعت وایې .

**تشریح** : په انسان کي دوه داسي خواهشات سته چي دا احتمال سته چي په ټوله دین کي دفساد سبب وگرځي :

(۱) د نس خواهشات چي همیشه د ښه خوړو فکر کوي .

(۲) شهواني خواهشات چي همیشه په دې فکر کي وي چي هر ځای یو ښائسته ښځه وي باید دده په نکاح کي وي ، د نکاح

---

[1] عن انس قال قال رسول الله ﷺ اذا تزوج ..... الخ . مشکوة ج ۲ صـ

په ذریعه سره یې شهواني شوق پوره کیږي، لهذا د نصف دین حفاظت خو وسو او دباقي نیمایي دین تکمله به په عباداتو، ښه افعالو او ښه اعمالو سره پوره کیږي .

(۲) د حلال رزق طلب به کوي چي دا بنسټ د عباداتو دی.

نکاح په شریعت مقدسه کي یو لوړ سنت عمل دی ، کله نکاح فرض وي، کله واجب وي، کله سنت وي، کله مکروه وي او کله حرام گرځي، تفصیل یې زموږ په رساله (تحسین النکاح ) کي ملاحظه کړئ .

البته نکاح د نصف ایمان یا نصف دین مرتبه لري انسان پاکدامنه کوي ، په احادیثو مقدسوو کي ډیر فضائل ذکر دي او دا طریقه مسنونه دانبیاء کرامو علیهم السلام ده ، او همدارنگه یو لوی انعام دی ډیري فائدې پکښې دي ، مگر ځیني خلگ لوی خیانت کوي ښځي یې کښېنولي وي په نکاح یې نه ورکوي او سپین سري سي ، د یو غلط غرض په خاطر چي یا میراث راځخه یونسي یا یې غټ ولور مقصد وي یا وایې چي زما سیال نه راپیداکیږي نو دی به د آخرت په ورځ د الله ﷻ په حضور کي ددغه خیانت جواب ورکوي او دا دیو انسان سره لوی خیانت دی .

## ﴿۱۵﴾ **ږیره پرېښودل** :

﴿ خَالِفُوْا الْمُشْرِكِيْنَ اَوْفِرُوْا اللِّحٰى وَاَحْفُوْا الشَّوَارِبَ [1] ﴾

**ترجمه** : د مشرکینو څخه مخالفت وکړئ: ږیره اوږدوی او بریتونه پرې کوی .

**لغات** : اَوْفَرْ : د باب ضرب څخه معنی زیاتول .

اَللحىٰ: جمع د اَللِحْيَة په معنی د ږیره .

اَحْفَوْا: د بریتو په پرې کولو کې مبالغه کول .

**تشریح** : د مشرکینو دا عادت وو چې ږیره یې خریله او دمجوسیانو دا عادت وو چې ږیره یې تر موټ کوچنۍ کوله، او بریتونه یې اوږدول ، شریعت مقدسه د هغه بر خلاف حکم کړی دی چې ږیره اوږدوئ او بریتونه کوچني کوئ.

علماء کرام فرمایي: چې په دغه حدیث سره ثابته سول چې د کفارو د خصوصي عاداتو څخه به مخالفت کوی مشابهت به په عاداتو کې نه ورسره کوئ ، اوبل دا چې ږیره واجب ده او د واجب پریښودل گناه کبیره ده ، لهذا ږیره خرول یا تر موټ کمول حرام کار دی .

---

[1] عن ابن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ خالفوا ....... الخ مشکوة ج ۲ صـ ۳۸۰.

دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ دا عادت وو چي تر مټ زياته ږيره يې پرې کول ، اوپه ترمذي شريف کي ذکر دي چي نبي کريم ﷺ هم تر مټ زياته ږيره دشاوخوا د اطرافو څخه پرې کول .

ږيره پرېښودل د يو لك څليرويشت زره انبياء كرام عليهم السلام عادت اوسنت دی ټوله صحابه کرامو رضوان الله تعالى عليهم اجمعين ږيري درلودې ، او دڅلورو امامانو (امام اعظم،امام شافعي، امام مالك، امام احمدبن محمد بن حنبل رحمة الله عليهم اجمعين) په نزد يو موټ ږيره پرېښودل واجب ده .[1]

نو د داسي يو ټينګ سنت څخه مخالفت کول لويه بد بختي ده ، زموږ په هيواد کي اوس دا مصيبت ډير عام سوی دی د ځوانانو څخه علاوه سپين ږيري هم په دغه مصيبت اخته دی ، الله ﷻ دي ټول مسلمانان ددغه مصيبت څخه خلاص کړي . آمين .

---

[1] د احنافو كتابونه : فيض الباري ج ۴ صـ ۳۸۰، بذل المجهود ج ۱ صـ ۳۳، اشعة المعات ج ۱ صـ ۱۳۰،او داسي نور . د امام مالك كتاب الابداع في منار الابتداع، دامام شافعي كتاب : كتاب الام . دامام احمد بن محمدبن حنبل كتاب شرح المنتهي. جواهر الفقه ج ۲ صـ ۴۲۴.

**﴿۱۶﴾ د حلال رزق کوښښ کول :**

﴿ لاَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ جَسَدَ غُذِّىَ بِالْحَرَامِ [1] ﴾

**ترجمه** : هغه بدن به وجنت ته داخل نسي چي دهغه پرورش په حرام (مال) سره سوی وي .

**لغات** : غُذِّیَ : د نصر دباب څخه، په معنی د خوراك ورکول . جَسَدَ : بدن انساني او جمع يې اَجْسَادْ دی .

**تشريح** :د حديث شريف مطلب دادی چي که يو شخص حرام مال وخوري او هغه مؤمن وي د جنت و هغه لوړ مقاماتو ته نسي داخليدلای ، او که حرام مال حلال وبولي نو بالکل جنت ته نسي تللای ، يا دا چي حرام خوره مؤمن جنت ته نسي داخليدلای تر څو چي د حرام مال د خوړلو سزا ونه څکي .

فقهاء کرام فرمايي : که چاته دا معلومه سي چي ددغه شخص مال اکثره حرام دی نو ددغه شخص ميلمستيادي نه قبلوي، کله بيا داسي وي چي مال خو نه دی حرام ليکن ميلمستيا يا واده داسي وي چي د ډوډی پر وخت عکاسي کوي يا سرود وي نو دغه ډول ډوډی به هم نه خوري او دغسي واده يا ميلمستيا ته به بالکل څوك نه ځي . پوره تفصيل په هداية جلد ۴ کي موجود

---

[1] عن ابي بكر ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : لايدخل ...... الخ . مشكوة ج ۱ صـ ۲۴۳.

دی . او په حدیث نمبر ۱۰ کي تیر سو .
مسئله : که چیري حرام شی وخوري بیا وروسته خبر سي نو قی کوي به یې ، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه یو ځل دغسي قی وواهه چي ده مبارك ته معلومه سول چي دا مال حرام دی .[1]
مسئله : که چا حرام مال خوړلی وي نو ددې کفاره څه ده ؟
د زړه په اخلاص سره به توبه او استغفار کوي او الله پاك جل جلاله ته به زاري او دعاء کوي چي معاف کړل سي .
مسئله : که دیو چا سره حرام مال وو دغه حرام مال به بیله د ثواب دنیته پر مسکینانو باندي خیراتوي .
مسئله : کوم سړی چي کاروبار کوي د خپل کاروبار معلومات به کوي چي په شریعت مقدسه کښې دا زما کاروبار جواز لري کنه، دامعلومات پر ده باندي فرض دی.
د عباداتو د قبلیدو بنیاد پر حلال رزق باندي دی ، په یوه روایت کي حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نقل کوي چي دهغه چا لمونځ نه قبلیږي چي دده نس په حرامو سره ډك وي ، همدارنگه دعاء یې هم نه قبلیږي .[2]

---

[1] احیاء العلوم ج ۲ صـ ۱۲۸.
[2] احیاء العلوم ج ۲صـ ۱۲۸.

﴿۱۷﴾ **سلام اچول** :

﴿ اَلْبَادِيُّ بِالسَّلاَمِ بَرِئٌ مِّنَ الْكِبْرِ﴾ [1]

**ترجمه** : اول سلام اچونکی د تکبر څخه خلاص دی .

**لغات** : اَلْبَادِي : اول کونکی ،

بَدَاَ د فتح د باب څخه دی معنی یې شروع کول دي .

بَرِئ : د فتح، سمع اوکرم دباب څخه معنی یې نجات حاصلول .

اَلْكِبْرُ : غرور، د کرم دباب څخه په مرتبه کې لوړوالی ، دنصر اوسمع دباب څخه : په عمر کښې لوړ والی .

**تشریح** : کله چې دوه مسلمانان په یوه حالت یا دواړه سواره وي یا دواړه پر پښو وي چې سره مخامخ سي هر یوه چې اول سلام اداء کړی نو هغه دتکبر څخه لیري دی ، یا الله ﷻ دده د زړه څخه تکبر باسي ددغه عمل په وجه .

**د تکبر تعریف** : تکبر دې ته وایې : چې مقابل خلگ سپك و بولي او ځان دکمالاتو خاوند وبولي او نور دکمالاتو خاوند ونه بولي، او نورو ته سلام ادا کول د ځان توهین بولي . تکبر ډیره سخته گناه ده په قرآن کریم او احادیثو
مقدسوو کې یې ډیر بدوالی راغلی دی .

---

[1] عن عبدالله ان النبي ﷺ قال : البادي ....... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۰۰.

**د سلام احكام** :سلام اداء كول سنت كفايې دى او جواب يې واجب كفايې دى .[1] يعني په يوه ټولۍ كي كه يو نفر سلام اداء كړي نو سنت اداء سول او كه چيري يو سړى يوې ټولۍ ته دمسلمانانو سلام ادا كړي او په هغو كي هم يو سړى جواب وركړي نو دټولي ټولۍ غاړي د واجب څخه خلاصي سوې .

نبي كريم ﷺ ډير تاكيد كړى دى چي سلام عام كړئ ځكه دا دمسلمانانو په مينځ كي دالفت اومحبت سبب گرځي .

كه دوه نفره سره يو ځاى سول نو اول به څوك سلام ادا كوي؟ لوړ سړى به وكښنته ته سلام اداء كوي مثلا تيريدونكي سړى و ولاړ يا ناست سړي ته، كشر و مشرته ،او كه مشر يې كشر ته اداء كړي هم صحيح ده دنبي كريم ﷺ څخه داعمل ثابت دى ، يو سړى چي پر دابه (سواري) سپور وي هغه به و پياده ته سلام ا داء كوي او كه دواړه پياده وه نو حكم يې پورته ذكر سو .

سلام چونكه يو دعاء ده نو ځكه كافر ته به سلام نه اداء كوي ځكه چي كافر لره دعاء نسته بلكه د ضرورت په وخت كي به نور الفاظ استعمالوي .

او همدارنگه سلام او جواب دواړه به په خوله اداء كوي نه په لاس يا په گوتو باندي، ځكه دا ديهودو او نصاراوو عادت و

---

[1] مرقات ج ۸ صـ ۴۲۹.

و. البته که یو څوك لیري وي نو سلام خو به په خوله اداء کوي او په لاس که اشاره وکړي چي ما سلام اداء کړي نو بیا پرواه نلري ، او همدارنگه جواب د سلام هم په خوله واجب دی په لاس کفایت نه کوي.

سلام اچول په شروع دمجلس او په آخر دمجلس کي اچول پکار دي.[1] السلام علیکم ورحمة الله ویل افضله دي ، سلام علیکم هم صحیح دی مگر افضله هغه لوړ دی.

په بعضو ځایو کي به سلام نه اچوي:

۱: په مسجد کي به سلام نه اچوي ځکه چي خلگ په عبادت مشغول وي.

۲ : په مجلس کي دتدریس به سلام نه اچوي.

۳:په مجلس کي دذکر به سلام نه اچوي.

۴: په غسل خانه او اوداسه په ځای کي او داسي نور دغسي نامناسبه ځایو کي به سلام نه اچوي. په دغه مذکوره صورتو کي که چا سلام واچاوه جواب یې نه دئ لازم.

مسئله : که نامحرمي ښځي سلام واچاوه که ځوانه ښځه وه جواب به نه ورکوي که سپین سري وه بیا به په زوره جواب ورکوي.([1])

---

[1] مرقات ج ۸ صـ ۴۵۳.

﴿۱۸﴾ **غيبت سخته ګناه ده** :

﴿ اَلْغَيْبَةُ اَشَدُّ مِنَ الزِّنَا [2]﴾

**ترجمه** : غيبت کول تر زنا ډير سخت دی .

**لغات** : اشد : د ضرب دباب څخه معنی يې سختيدل .

**تعريف دغيبت** : غيبت و دې ته وايې چې د يو شخص په عدم موجودګي کي دده متعلق يو داسي خبره وکړې که چيري دغه شخص دا خبره واوري نو خوا يې بديږي که چيري داعيب په دغه شخص کي وي، او که چيري داعيب په دغه شخص کي نه وي نو دې ته بهتان ويل کيږي .

**تشريح** : په مذکوره حديث شريف کي غيبت تر زنا بد بلل سوی دی، وجوهات د بدوالي يې علماء کرامو ذکر کړي دي : (۱) زنا هر چا ته معلومه ده چي ما يو غټه ګناه وکړه نو توبه ځيني کاږي مګر غيبت کونکی دا ګناه سپکه بولي. (۲) غيبت کونکی غيبت ګناه نه بولي (۳) دغيبت کونکي ګناه نه معافيږي تر څو چي هغه سړی يې معاف نه کړي که چيري هغه سړی خبر سوی وو. ددغه درو وجوهاتو پر بنياد

---

1 : فتاوی هنديه ج : ۵ ص : ۳۲۵

2 عن ابي سعيد و جابر قالا : قال رسول الله ﷺ الغيبة .... الخ . مشکوة ج ۲ص۴۱۵.

غالبا نبي کريم ﷺ تر زنا بده بللې ده که څه هم زنا په خپله يو لويه اوعظيمه ګناه ده .

**شپږ ځايه غيبت جواز لري** :

1. که يو چا ظلم درباندي کړی وي ددغه ظلم بيان و قاضي،حاکم وغيره ته کول جواز لري .
2. که يو شخص غلط کار کوي ته وداسي شخص ته دا بيان وکړې چي هغه يې اصلاح کولای سي لکه دکور مشر ،عالم،مقتدا وغيره ، مقصد دي تغير دمنکر وي
3. د مفتي څخه دسوال په وخت حقيقت د مخالف شخص بيانول دا هم جواز لري . که مفتي ته دنامعلوم شخص په نامه ياد سي نو ښه کار دی .
4. يو شرير شخص وي خلګ خبرداره کوي چي دده دشر څخه وساتل سي لکه طالب دعلم يا طالب د رضا مندی الهي ﷻ لپاره چي وي و يو داسي شخص ته ځي چي هلته دده فائده نه وي يا ده ته دنيوي يا بل ضرر وي ، يا هغه سړی بدعمله وغيره وي . په شرط ددې چي مقصد به يې نصيحت وي نه بل شی .
5. يو شخص مشهوره وي په فسق يا بدعت سره نو ددغه

شخص حال بیانول جواز لري مګر هغه عیوب چي ظاهر وي لکه فسق،غلا وغیره ...

6. که یو شخص مشهوره وي په یو لقب باندي مثلاً ګوډ ، کوڼ .....او داسي نور . نو ددغه شخص په نه وجود کي په دغه نامه یادول پرواه نه لري په دې شرط چي پر طریقه دنقصان به نه وي مګر په بل نامه یادول افضل دي .

په دغه مذکوره شپږو ځایو کي غیبت پرواه نه لري .[1]

دغیبت دمجلس څخه ځان خلاصول :

که چیري په یو مجلس کي غیبت کیدی که یې قدرت درلودی نو په ښه اخلاقو سره دي یې منع کړي ، او که یې دمنع کولو قدرت نه درلودی نو دغه مجلس به پرېږدي او که یې مجلس هم نسو پاته کولای نو غوږ به نه پر نسي بلکه خپل ذکر به کوي ، انشاء الله مسئول به نه وي .[2]

---

[1] ریاض الصالحین صـ ۴۶۴.

[2] ریاض الصالحین صـ ۶۱.

**﴿۱۹﴾ د ظلم څخه ځان ساتل** :

﴿ اَلظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ [1]

**ترجمه** : ظلم دقيامت په ورځ دتاريکيو په صورت کي وي.

**لغات** : اَلظّلْمُ : جمع يې ظُلُمَات، دضرب د باب څخه معنی يې بې موقع ايښودل، د سمع دباب څخه دشپې تاريکه کيدل .

يَوْم : جمع يې ايام ده جمع الجمع يې اَيَاوِيْم ده .

اَلْقِيَامَةِ : د مرګه وروسته راپورته کيدل ، دنصر دباب څخه معنی يې دريدل .

**تعريف ظلم** : ظلم په لغت کي يو شی بې ځايه او بې موقع ايښودلو ته وايي او په عرف کي ورته تجاوز وايي ، په شريعت کي هم دغه معنی ده البته دشرعي محل تجاوز ته ظلم وايي . [2]

**تشريح** : د آخرت په ورځ ظالم داسي په تاريکيو کي راګير وي چي هغه نور چي مؤمن ته ورکول کيږي ظالم ځيني محروم وي او مؤمن د هغه نور په ذريعه سره تګ کوي .

---

[1] عن ابن عمر ﷺ ان النبي ﷺ قال الظلم ...... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۳۴.

[2] مظاهر حق ج ۴ صـ ۵۹۴.

اسلام د همدردۍ او وروروليۍ تعليم ورکوي او ظلم دا
دواړي مادي تباه کوي ، په حديث قدسي کي ذکر دی : يا
عبادي ... الخ . چي الله ﷻ فرمايي : اې زما بندگانو ما پر
خپل ذات باندي ظلم حرام کړی دی نو ستاسو په مينځ کي
هم ظلم حرام دی يو پر بل باندي ظلم مه کوئ

**﴿۲۰﴾ ځان ساتل د حسد، بغض، بدگمانۍ وغیره څخه** :

﴿ اِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَاِنَّ الظَّنَّ اَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَلاَتَحَسَّسُوْا وَلاَتَجَسَّسُوْا وَلاَتَنَاجَشُوْا وَلاَتَحَاسَدُوْا وَلاَتَبَاغَضُوْا وَلاَتَدَابَرُوْا، وَ كُوْنُوْا عِبَادَاللهِ اِخْوَانًا﴾ [1]

**ترجمه** : د بد گمانۍ څخه ځان وساتئ بیشکه بدگماني د خبرو بدترین درواغ دي، او نه به د خلگو پر پټو خبرو باندي ځان خبرداره کوئ که دخیر خبر وي که د شر(هغه خبري چي تا سوء ظن ته رسوي ) یو تر بله ځان لوړ مه بولئ، یو تر بله به حسد نه کوئ ، یو تر بله به بغض نه کوئ، یو تربله به غیبت نه کوئ ، اې د حق تعالی جل وعلا بندگانو یو تر بله وروڼه وګرځئ د وروګلوۍ ژوند سره کوئ .

**لغات** : اَلْظَنّ : ګمان ته وايې، دیو شي متعلق که ستا داخیال وي چي دا کار سوی دی مثلا زید راغلی دی کنه که دې دنه راتګ خیال کم وي دې ته وهم وايې او که دي د راتګ خیال ډیر وي دې ته ظن وايې ، او که دواړه برابر

---

[1] عن ابي هريرة ﷛ قال قال رسول الله ﷺ اياكم ..... الخ مشكوة ج ۲ صـ .

وي هغه ته شك وايي كه دي خپله په سترګو وليدی دي ته يقين وايي .

وَلاَتَحَسّوا: ځان په خير خبردار کول د باب تفعيل څخه دی . وَلاَ تَجَسّسُوا: ځان خبر داره کول په شر باندي، دباب تفعيل څخه دی .

وَلاَتَنَاجَشُواْ: د ځان لوړوالی په خلګو کي ، دنفرت په معنی هم دی .

**تشريح** : په دغه حديث مقدسه کي مؤمنان د هغه بدو باطني مريضيو څخه راګرځوي چي دمسلمانانو وروړګلوي او اتفاق ته سخت تاوان کوي .

(۱) ګمان : ګمان په شريعت مقدسه کي ۴ قسمه دی :

(۱) حرام : چي ذالت الهي ﷻ پر ما باندي رحم نه کوي نه مي بخښي بلکه دا فرض دی چي مؤمن به وايي الله ﷻ پر ما رحم کوي . (۲) واجب : چي د يو سړي ظاهري حالت سم وي بيله دليل قوي بدګماني حرامه ده . (۳) مباح: چي سړي ته په درو او څلورو رکعاتو کي شك وي : اوغالب ګمان يي د څلورو رکعاتو وي نو پردغه عمل کول جائز او مباح دي ، البته که پر يقين عمل وکړي چي دري رکعاته دي هم

صحيح دي . (۴) مستحب : دهر مسلمان سره نيك گمان كول .[1]

(۲) تحسس او تجسس: د خلگو په هغو شيانو ځان خبرول چي خلگ يې پټوي مطلق طلب خبرداري ته تحسس وايې او پټ عيوب لټولو ته تجسس وايې .[2]

(۳) تحاسد: حسد يو باطني مرض دی، مطلب يې دادی چي يو سړی يو نعمت ولري ستا دا اراده وي چي دده څخه دغه نعمت زائل سي (دغه نعمت دي نه وي پر پيرزو) او ماته راكړل سي ، يا دمطلق زوال اراده لري دا نيت حرام دی او دې ته حسد وايې ، كه د زوال اراده ونه لرې بلكه د ذات الهي ﷻ څخه دځان لپاره هم دغسي نعمت طلب كړې نو بيا پرواه نه كوي دې ته غبطه وايې ، حضرت مولانا رومي رح هم فرمايې : چي حسد يوه بده مريضي ده چي په توسط د اولياؤو پاتيږي .[3] بيت :

خاك شو مردان حق را زير پا خاك بر سركن حسد را همچوما



---

[1] احكام القران ج ۲۷ص ۳۰۵.

[2] معارف القرآن ج ۱۲۰، ۸ .

[3] مرقات ج ۹ ص ۲۳۲.

《۲۱》**د بخل بد والی** :

《 خَصْلَتَانِ لاَتَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ اَلْبُخْلُ وَ سُوْءُ الْخُلْقِ[1] 》

**ترجمه** : په مؤمن کي دوه (بد) عادته نسي يوځای کيدلای بخل او بد اخلاق.

**لغات** : تَجْتَمَعَانِ: باب افتعال په معنی د جمع کيدل. سوء اَلْخُلْقِ : د باب نصر څخه په معنی د پيداکيدل او اخلاقو ته وايي او دباب سمع څخه په معنی ريز ريز کيدل .

**تشريح** : دمذکور حديث شريف مطلب دادی چي په مؤمن کامل کي دا دوه عادتونه نسي يو ځای کيدلای ځکه چي دا دواړه (بخل، او بداخلاق) ډير لوی عيبونه او ډېرو بديو مغز دی، دا هر يو صفت چي په مؤمن کي وي دده ايمان وکمال ته نه پريږدي ، نو پر مؤمن باندي لازمه ده چي ددغه دواړو عيبو څخه ځان پاك وساتي .[2]

په يو حديث شريف کي ذکر دي چي بخيل سړی د ذات الهي ﷻ څخه، دخلگو څخه او دجنت څخه ليري دی ، او

---

[1] و عن ابي سعيد قال: قال رسول الله ﷺ خصلتان........ الخ . مشکوة ج ۱ صـ ۱۶۵.

[2] مظاهر حق ج ۲ صـ ۲۳۵.

دالله ﷻ په نزد تر بخیل عابد جاهل سخي محبوب دی .[1]

بخل د دنیوي او دیني بدبختیو یو لوی سبب دی مثلا زکوة، خیرات،صدقات، د دوستانو سره کومك،د کور او اولاد سره پراخي د ټولو څخه مانع دی . حق تعالی ﷻ دي ټول مسلمانان ددغه خبیث صفت څخه خلاص کړي .



---

[1] مرقات ج ۴ صـ ۳۲۵.

﴿۲۲﴾ **د دنیا محبت** :

﴿ حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيْئَةٍ﴾ [1]

**ترجمه** : د دنیا محبت د هري خطا رېښه ده .

**لغات** : اَلْدُنْیَا : موجوده زندگي، دَنَا د نصر د باب څخه په معنی د نژدې کیدل. رَاْسُ : جمع یې رُؤُسْ ده او په معنی د سر ده .

خَطِيْئَة : د باب سمع څخه په معنی د خطا ده .

**تشریح** :په مذکوره حدیث مقدسه کي ذکر دي چي محبت د دنیا بد دی . ۱ ولي دمحبت په وجه باندي سړی ړوند اوکوڼ گرځي د حلالو او حرامو فرق نه کوي .۲ محبت د دنیا د الهي محبت مانع گرځي. ۳ بل دا چي د دنیا حب انسان د دنیا په غیر ضروري کارو باندي اخته کوي چي ضرورت ورته نه وي حب د دنیا یا زیاته مشغله به نه ورسره کوي ، انسان خو په اصل کي د عبادت او معرفت لپاره پیدا سوی دی او هم دغه اصل کار دی په یوه حدیث مبارک کي ذکر دي چي د الله ﷻ د طرفه پر حضرت موسی ﷺ باندي وحي راغلې چي یاموسی !ﷺ د دنیا په محبت باندي به نه

---

[1] عن حذیفة قال سمعت رسول الله ﷺ یقول في خطبة : الخمرجماع الاثم والنساء حبائل الشیطان وحب الدنیا ...... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۴۴.

مشغوله کيږي زما په بارگاه کي تر دې لويه گناه نسته .1
حضرت عبدالله بن مبارك رح فرمايې : چي د دنيا محبت او گناهونه د چا زړه ښکار کړی هغه زړه ته نيکي هيڅکله هم نه رسيږي .2
ملا علي قاري رح فرمايې چي ددغه حديث مبارك د مفهوم مخالف څخه دا معلوميږي چي د دنيا څخه بې رغبتي د ټولو نيکيو مغز دی .3
په يوه بل حديث شريف کي ذکر دي چي : (لعن عبدالدينار) لعنت کړه سوی دی پر هغه چا باندي چي دی غلام د مال وي ، يعني چي دمال په محبت گرفتار سي او د الله ﷻ د طاعت او عبادت څخه ليري والی گويا د مال غلامي ده.[4]
امام غزالي رحمه الله فرمايې چي : الله ﷻ کله دنيا پيداکړه نو شيطان مچ کړه او دا يې وويل چي څوك ستا سره محبت وکړي هغه په حقيقت کي زما غلام دی.[5]
داحاديثو څخه معلوميږي چي مال خو ښه دی مگر محبت او زياته مشغله يې بده ده .

---

[1] احياء العلوم ج ٢ صـ ٢٥٠.
[2] مكاشفة القلوب صـ ٢٤٠.
[3] مرقات ج ٩ صـ ٤٠٣.
[4] مشكوة ج ٢ صـ ٤٤.
[5] احياء العلوم.

## ﴿۲۳﴾ د مسلمان خطا ايستل :

﴿ مَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا﴾ [1]

**ترجمه** : كوم څوك چي موږ لره خطا ايستل وكړي هغه زموږ (د جماعت) څخه نه دی .

**لغات** : غَشّنَا : د نَصرَ دباب څخه معنی يې خطاايستل ، خلاف مصلحت ښكاره كول .

**تشريح** : مسلمان ته تكليف رسول حرام دی او داسي شخص د نبي كريم ﷺ د پيروانو څخه نسي كيدلای ، په حديث شريف كي ذكر دي چي : كوم تاجر يا خرڅونكی چي امين او رښتياگويه وي (خطاايستل نه كوي) د هغه حشر به د انبياء كرام عليهم السلام او صديقينو سره وي . [2]

په يو روايت كي ذكردي چي:الله ﷻ دي رحم وكړي پرهغه شخص باندي چي د رانيولو او خرڅولو په وخت كي نرمي كوي . [3]

فقهاء كرامو اصول ذكر كړي دي چي په كومه معامله كي چي د جنگ اوبدامنۍ توهم پيداكيږي شريعت مقدسه ددې معاملې ممانعت فرمايلی دی او هغه بيع بيع فاسد بولي .

---

[1] عن ابن عمر وابي هريرة عن النبي ﷺ قال : من حمل علينا السلاح فليس منا ، رواه بخاري و زاد مسلم من غشنا ..... الخ . مشكوة ج ۲ صـ۳۰۵.

[2] مشكوة .

[3] بخاري

## ﴿۲۴﴾ د جمعې دلمانځه پرېښودونکی منافق دی :

﴿ مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ كُتِبَ مُنَافِقًا فِيْ كِتَابٍ لاَيُمْحٰى وَلاَيُبَدَّلُ ﴾ [1]

**ترجمه** : کوم چا چي بیله شرعي عذره د جمعې لمونځ پرېښودی نو په داسي کتاب کي منافق لیکل کیږي چي (لیکنه) یې نه خرابیږي او نه بدلیږي .

**لغات** : یَمْحٰی : دنصر،سمع دباب څخه معنی د خط خرابول.

یُبَدّلُ : د باب تفعیل څخه بدلو .

**تشریح** : د جمعې لمونځ فرض عین دی ، علامه ابن همام رح او علامه یحیی رح فرمایې چي دجمعې فرضیت په قرآن،حدیث او اجماع سره ثابت دی ځوك چي د جمعې د لمانځه څخه انکار وکړي هغه کافر دی ، او کوم سړی چي انکار نه کوي البته بیله شرعي عذره د جمعې لمونځ نه کوي نو په حدیث کي د هغه حکم ذکر دی .

جمعې ته ځکه جمعه وایې چي حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء رضي الله عنها په دغه ورځ په مځکه کي سره یو ځای سوي دي ، یا په دې خاطر چي خلگ په دې ورځ په مسجد کي سره یو

---

[1] عن ابن عباس ان النبي ﷺ قال من ..... الخ . مشکوة ج ۱ صـ ۱۲۱.

ځای کیږي ، یا به دې خاطر چي د آخرت ورځ هم د جمعې په ورځ قائمیږي چي ټول مخلوق پکښې جمع کیږي .

مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ: چي یو عذر شرعي نه وي مثلا دیوظالم څخه بیره، سخت باران وغیره نو بیا دغه وعید دی کوم چي لوړ ذکر سو ، او دا خبره دحدیث چي منافق لیکل کیږي ډیره سخته خبره ده حق تعالی ﷻ دي ټول مسلمانان ددغه غلط عمل څخه وساتي .

فقهاء کرامو ذکر کړی دی چي دجمعې په سهار سفر کول مکروه دي ولي دجمعې دلمانځه د ضائع کیدو خطره وي په دې کي به سړی فهم کوي چي داسي ځای ولاړ نسي چي دجمعې لمونځ ځیني ضائع سي .

دجمعې دلمانځه متعلق ډېر احکام دي فقهآء کرامو ذکر کړي دي په د غه مختصره رساله کي گنجایش نسته چي ټول احکام پکښي بیان سي . البته یوه خبره ډېره مهمه ده : هغه داچي دجمعې دلمانځه لپاره چي کله اول اذان وسي خرڅېدل رانیول مکروه تحریمي دي لهذا مؤمنان به کار وبار او دوکانونه بندوي . که چا تر اذان وروسته کاروبار وکی نو هغه حلالي پیسې یې دکراهیت تحریمي په وجه مکروه سو حق جل وعلا دي مؤمنانو ته عقل ، هدایت ، او عمل ور په نصیب کي .

**﴿۲۵﴾ د عکسو دفع کول** :

﴿ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِيْ بَيْتِهِ شَيْئًا فِيْهِ تَصَالِيْبُ اِلاَّ نَقَضَهُ﴾ [1]

**ترجمه** : بیشکه نبي کریم ﷺ په کور کښې داسي شی نه پریښودی چي پر هغه به عکس وو بلکه نبي ؑ به هغه ماتوی .

**لغات** : تَصَالِيْب : د صَلِيْب جمع ده دنصاراوو خاص شعار ته وايي لیکن مراد عکس دی ،

نَقَضَهُ : باب نصر څخه ماتیدو ته وايي .

**تشریح** : په مذکوره حدیث کښې ذکر دي چي نبي کریم ﷺ عکس نه پریښودی او په ډیرو احادیثو کي دعکس ډیر قباحت (بدوالی) بیان سوی دی ، په یوه حدیث شریف کي ذکر دي چي په کوم کور یا خونه کي عکس وي ملائکې د رحمت هغه کور ته نه داخلیږي .

حکم : ملا علي قاري رح فرمايي: چي عکس سخت حرام دی او ګناه کبیره ده که پر ټوکر وي ، پر دیوال وي ، پر

---

[1] عن عائشة رضي الله عنها ان النبي ﷺ ... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۳۸۵.

كاغذ وي ، اويا پر سكه وي كه د ذي روح شي عكس وي او كه يې مجسمه جوړه كړې وي دا ټوله سخت حرام دي ، البته د درختو ،باغ وغيره د غير ذي روح شيانو عكسونه پروا نه لري [1] ، دعكسو كاروبار يا دعكس اخستلو روپۍ هم حرامي دي .

په حديث شريف كي ذكر دي چي بېشكه كوم خلګ ته چي دآخرت په ورځ سخت ترين عذاب وركول كيږي په هغوئ كي عكس جوړونكي هم دئ .( [2])

په ترمذي شريف كي ذكر دي چي نبي كريمﷺ فرمايي : چي دآخرت په ورځ به دجهنم داور څخه يوه اوږده غاړه راووزي دغه غاړي لره دوې سترګي وي اودوه غوږونه وي اورېدونكي اوژبه لري خبري كوي دا وايي : چي حق جل وعلا ماته وكالت راكړئ دي چي دغه درې نفره وجهنم ته داخل كم ( تحفة الاحوذي كي وايي ډېر درسوائي عذاب دئ ) يو دهغو څخه عكس جوړونكى دي .( [3])

ډېر خلګ په دغه بېكاره ناروا اخته دي حق جل وعلا دي مسلمانانو ته عقل صحيح ور په نصيب كړي چي ددغه بېكاره ناروا او دآخرة درسوائي څخه ځان وساتي .

---

[1] مرقات ج ٨ صـ ٣٢٥، مظاهر حق ج ۴ صـ ٢٢۶.

[2] : مسلم ٢ \ ١٩٩

[3] : ترمذي ج : ٣ ص : ٨٥

**﴿۲۶﴾ مرګ د هغه چا چي د جهاد تمنی یې هم نه وي کړې :**

﴿ مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلٰى شُعْبَةٍ مِّنْ نِفَاقٍ﴾ [1]

**ترجمه** : کوم څوك چي مړ سي په داسي حال کي چي نه یې په خپل ژوند کي جهاد کړی وي او نه یې په زړه کي دجهاد تمنا کړې وي ، نو هغه څوك پر قسم باندي د نفاق مړسوی دی .

**لغات** : مَاتَ : دباب نصر څخه مرګ ته وايي.

يَغْزُوْ : د باب نصر څخه جهاد ته وايي.

يُحَدِّثُ: د باب افعال څخه ایجاد ته وايي او د باب تفعیل څخه بیان کولو ته وايي .

**تشریح** : جهاد دمسلمانانو د سرلوړی،عزت او آزادۍ سبب دی په قرآن کریم او احادیثو کي دجهاد لوړ اهمیت او ډیر فضائل ذکر دي ، او همدارنګه په قرآن کریم او احادیثو کي ذکر دي چي جهاد تر آخري ورځي د دنیا جریان لري .

البته جهاد اقسام او شرائط لري فقهاء کرامو یې په سیرت په کتابو کي وضاحت کړی دی د ټولو شرائطو مراعت کول

---

[1] عن ابي هريرة ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ من مات .... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۳۳۱.

ډیر ضروري دي .

په مذکوره حدیث مبارك کي هم یو قسم وعید ذکر دي چي کوم سړی په ټوله ژوند کي نه جهاد وکړي که په نفس سره وي که په مال سره ، او نه یې په زړه کي دا تمنا کړې وي چي کاشکي زه مجاهد وایې ددې سړي مرگ لکه دمنافق سړي مرگ داسي دي ، ولي منافقین د جهاد څخه خلاص دي په دې وجه مشابهت ورسره لري .

ملاعلي قاري رح ذکر کړی دی چي ددې حدیث شریف څخه دا مسئله ثابتیږي چي که څوك دعبادت نیت وکړي او دعبادت ترمخه مړ سي نو دعبادت د پریښودلو عذاب او گناه نسته .[1] او پر نیت باندي یې هم ثواب سته .

---

[1] مرقات ج ٧ صـ ٢٨٣.

﴿۲۷﴾ **د درود شريف فضيلت** :

﴿ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ وَاحِدَة صَلَى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرًا﴾ [1]

**ترجمه** : که چا پر ماباندي يو ځل درود شريف ووايه نو الله ﷻ به پر هغه شخص لس ځلي رحمت نازل کړي .

**لغات** : صَلّٰى : دباب ضرب څخه ،دعاء کول، لمونځ کول، برکت پر کول، ښه تعريف کول .

**تشريح** : د درود شريف برکات په احاديثو کي ډير ذکر سوي دي ، په يوه حديث شريف کي ذکر دي چي په يوه درود شريف ويلو باندي الله ﷻ پر دغه بنده باندي لس رحمته نازلوي او دلسو گناهو مغفرت يې کوي، او لس درجات يې لوړوي . [2]

په يو بل حديث شريف کي ذکر دي چي دقيامت په ورځ زيات قريب و نبي کريم ﷺ ته هغه شخص دی چي زيات درود ويونکی وي . [3]

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي کوم سړی يو ځلي درود شريف ووايي الله تعالی ﷻ او ملائکي اويا

---

[1] عن ابي هريرة رضی الله عنه قال : قال رسول الله ﷺ من صلى ... الخ . مشكوة ج ۱ صـ ۸۶.
[2] مرقات ج ۳ صـ۸.
[3] مرقات ج ۳ صـ۸

واره رحمت پر دغه شخص نازلوي، ليکن دا فضيلت محدثين فرمايي د جمعې په ورځ دی .

که چا دجمعې په ورځ د مازديگر دلمانځه وروسته دغه درود شريف ۸۰ ځله ووايه داتيا ۸۰ کالو دعبادت ثواب ورکول کيږي او داتيا کالو گناوي معافيږي :

(اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الأُمِيِّ وَاٰلِه وَسَلِّمَ وَتَسْلِيْمًا)

حکم : (۱) يو ځل په ټول عمر کي درود شريف ويل واجب دي[1] . (۲) که څوك دنبي کريم ﷺ نوم مبارك واوري نو درود شريف ور باندي ويل واجب دي[2] . (۳) که څو ځله نوم واوري نو يو وار درود شريف ويل واجب دي او نور ځله مستحب دی .

درود په سر او په پای کي ددعا ويل دمقبوليت ددعا لپاره شرط دئ په ترمذي شريف کي دحضرت عمرؓ څخه روايت نقل دئ : چي دعا دمځکي او اسمان تر مابين معلقه وي لوړه نه خيږي تر څو چي درود ونه وايي .

مسئله : بې اودسه درود شريف ويل جائز دي . داوداسه سره نور على نور دئ .



---

[1] هدايه ج ۱ صـ ۳۰۱.

[2] البناية شرح هدايه ج ۲ صـ ۳۲۱.

﴿۲۸﴾ **د طالب العلم فضيلت** :

﴿ مَنْ سَلَكَ طَرِيْقًا يَطْلُبُ فِيْهِ عِلْمًا سَلَكَ اللّٰهُ بِهِ طَرِيْقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ وَاِنَّ الْمَلاَئِكَةَ لَتَضَعُ اَجْنِحَتِهَا رِضًى لِطَالِبِ الْعِلْمِ ﴾ [1]

**ترجمه** : كوم څوك چي يوه لار د علم دين دحاصلولو لپاره اختيار كړي نو الله تعالى ﷻ دا شخص د جنت پر لاري بيايي ، او ملائكي د طالب علم د رضامندۍ لپاره خپل وزرونه غوړوي .

**لغات** : سَلَكَ: د باب نصر څخه لاري ته ويل كيږي، او دافعال د باب څخه په معنى د داخليدو .

طُرُقْ : جمع دطَرِيْق ده په معنى دلار. اَجْنِحَتِهَا : جمع دجناج اومعنى يې وزر ده .

**تشريح** : فضيلت دطلب علم په قرآن كريم او احاديثو كي ډير ذكر سوى دى . په يوه حديث مبارك كي ذكر دي كه څوك د علم د طلب په حال كي مړ سو نو شهيد بلل كيږي .

په بل حديث كي ذكر دي چي پر هر قدم باندي د يوه كال

---

[1] وعنه قال : قال رسول الله ﷺ من سلك ... الخ . مشكوة ج ١ صـ ٣۴.

عبادت ثواب ورکول کیږي او پر هر قدم باندي الله تعالی ﷻ یو ښار په جنت کي ورکوي سهار او ماښام یې مغفرت کیږي او ملائکي شاهدي ورکوي چي دا خلگ د جهنم داور څخه خلاص دي .[1]

طلب دا معنی نه چي ټوله ورځ به دیني سبق وایې بلکه یو لږ وخت چي دیني سبق وایي که حادیث وي که دقرآن کریم ترجمه او که دفقهي کتابونه وي ، مطلب دا چي باید سړی مشغوله وي چي ددغه فضائلو مستحق وګرځي .

په یو بل حدیث شریف کي ذکر دي چي په شپه کي دیني درس کول تر ټولي شپې تر عبادت افضل دي .[2]

الله تعالی ﷻ دي ټولو مسلمانانو ته د دیني علم مشغله ورنصیب کړي که څه هم لږ وخت وي . آمین.



---

[1] تفسیر کبیر ج ۱ صـ ۱۹۷.
[2] مشکوة ج ۱ صـ ۳۱.

### ﴿۲۹﴾ د جماعت دلمانځه فضيلت :

﴿ صَلاَةُ الْجُمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلاَةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِيْنَ دَرَجَةً ﴾ [1]

**ترجمه** : د جماعت لمونځ تر يواځي لمانځه (په ثواب کي) اووه ويشت (۲۷) درجي زيات دی .

**لغات** : دَرَجَةٌ : جمع يې دَرَجَاتٌ ده او مرتبې ته وايې.

اَلْفَذُ : يواځي جمع يې افذا ده .

**تشريح** : دجماعت لمونځ په قول د علامه ابن همام رح او علامه ابن عساکر رح واجب دی ، او دشعائر اسلام څخه دی . په يو حديث شريف کي ذکر دي چي څوك پاکي وکړي او مسجد ته روان سي پر هر قدم يې الله تعالی ﷻ يوه نيکي ورکوي او يوه يوه درجه يې لوړيږي او يوه يوه گناه يې معافيږي . [2]

حضرت عمر ﷜ يو سهار پوښتنه وکړه چي فلانکی سړی په لمانځه کي نوو نو خلگو وويل چي هغه ډير عبادت کوی شايد بيده سوی وي نو حضرت عمر ﷜ و فرمايل

---

[1] عن ابن عمر قال : قال رسول الله ﷺ صلاة الجماعة ... الخ . مشکوة ج ۱ صـ ۸۵ ،

[2] مشکوة ج صـ ۹۲.

دسهار لمونځ په جماعت تر ټوله شپې تر ولاړي (و عبادت ته) بهتر بولم .[1]

څوك چي دجماعت لمونځ نه كوي په يو حديث شريف كي ذكر دي چي نبي كريم ﷺ ددغسي خلگو دكورو د سوځولو اراده كړې وه .[2]

رئيس المفسرين حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه څخه يو چا پوښتنه وكړه چي يو سړی ټوله شپه عبادت كوي د ورځي روژه نيسي ليكن دجماعت لمونځ نه كوي ، حضرت عباس رضي الله عنه وفرمايل چي دا شخص جهنمي دی .[3]

په يو بل حديث شريف كي ذكر دي : كه چا دسهار او ماخستن لمونځ په جماعت وكړی نو دټولي شپې دعبادت ثواب لري .[4]

دجماعت لمونځ پر قول د ابن همام رح واجب ذكر سو ، ببله عذره پريښودل يې گناه كبيره ده او د آخرت په ورځ پر دغه عمل عقاب سته .

---

[1] مشكوة صـ ۹۷.

[2] مشكوة صـ ۹۵.

[3] البناية ج ۳ صـ ۳۸۵.

[4] مشكوة صـ ۶۲.

## ﴿۳۰﴾ د خیرات او صدقې فضیلت :

﴿ بَادِرُوْا بِالصَّدَقَةِ فَاِنَّ الْبَلاَءَ لاَيَتَخَطَّاهَا﴾ [1]

**ترجمه** : د صدقې په ورکولو کې تلوار کوئ ېږشکه مصیبت او بلا تر دغه صدقې نسي مخته کیدلای .

**لغات** : بَادرُوْا : دباب مفاعله څخه تلوار کول.

يَتَخَطّاهَا : د باب تفاعل څخه په معنی دتجاوز کول، تړل .

**تشريح** : یومالداره شخص چې صاحب نصاب وي زکوة پر فرض دی ، ددې څخه ماسوا زيات مال د الله ﷻ په لاره کښې خرڅولو ته صدقه وايې او په پښتو ژبه کې يې خيرات بولي ، ددغه صدقې فضائل او برکات په احاديثو کې ډير زيات بيان سوي دي .

په يو حديث شريف کې ذکر دي چې د خپلو مريضيو علاج په صدقه سره وکړئ ، په يو روايت کې ذکر دي چې صدقه اويا ۷۰ مريضۍ ليري کوي .

حاصل دا چې صدقه د ډيرو آفتو دليري کولو لپاره ده .

په يوه حديث شريف کې ذکر دي چې صدقه د الله ﷻ غضب وژني او بده مرگه انسان ساتي يعني دمرگ په وخت کې د

---

[1] عن علي قال : قال رسول الله ﷺ بادروا ..... الخ . مشکوة صـ ۱۶۷.

شيطان په وسوسو نه اخته کيږي يا په داسي مرض نه اخته کيږي چي بې صبره وي او کفري الفاظ وايې بلکه دغه صدقه يې ساتي .[1]

په يو بل حديث شريف کي ذکر دي چي سخي سړی الله ﷻ ته نږدې والی لري جنت ته نژدې وي وخلګو ته نژدې يعني محبوب وي حتی چي الله ﷻ ته جاهل سخي تر بخيل عابد محبوب وي .[2]

په يو حديث شريف کي ذکر دي چي مال په صدقه نه لږيږي او هره ورځ سهار ملائکي دعاء کوي چي يا الله ﷻ خرڅونکي ته يې عوض ورکړې .

صدقه کول يو څو شرطونه لري : (۱) احسان به نه پر اچوي . (۲) ذليله او خوار به يې نه بولي . (۳) پاك مال به وي . (۴) ښه نيت يعني دالله تعالی درضالپاره به يې ورکوي .



---

[1] التعليق الفصيح .

[2] مشکوة صـ ۱۶۴.

﴿۳۱﴾ **د مسجد تعظيم** :

﴿ اِذَا رَاَيْتُمُ الرَّجُلَ يَتَعَاهَدُ الْمَسْجِدَ فَاشْهِدُوْا لَهُ بِالاِيْمَانِ﴾ [1]

**ترجمه** : كله چي تاسي يو سړی وويني چي دمسجد خيرخواهي (خدمت) كوي نو تاسي دهغه سړي دايمان شاهدي وركړئ (يعني چي ته ايمانداره يې ) . بيشكه الله ﷻ فرمايي : (انمايعمر مساجدمن امن بالله واليوم الاخر)

**لغات** : يَتَعَاهَدُوْا : حفاظت كولو ته وايي، او په باب دافتعال كي مبالغه ده يعني ښه حفاظت كول .

**تشريح** :ملاعلي قاري رح فرمايي چي د يتعاهد معنى داده چي كه چا دمسجد خدمت يابنا كول نو تاسي يې دايمان شاهدي وركړئ ځكه دا دده دايمان پر ښه والي باندي دلالت كوي او دا يو لويه خوشخبري ده .

په احاديثو او قرآن كريم كي د مساجدو د خدمت او جوړولو په باره كي ډير فضائل ذكر دي .

په يو حديث كي ذكر دي چي كه چا دالله ﷻ لپـــاره مسجد

---

[1] وعن ابي سعيد الخدري قال قال رسول الله ﷺ اذا رايت... الخ .

جوړ کړی يعني خپل نوم يې نه پر کښېښودی الله ﷻ به په جنت معظم کي کور ورکړي ، اشاره ده چي داسړی جنتي دی .
په يو بل حديث شريف کي ذکر دي چي د آخرت په ورځ به اووه کسه دعرش تر سايې لاندي ناست وي او په دغه ورځ بله سايه هم نسته ، يو هغه سړی دی چي دده زړه دمسجد سره تړلی وي چي د لمانځه وخت وي کنه دمسجد خدمت سوی دی کنه وغيره دغه فکر ورسره وي .
حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايې چي : نبي ﷺ په محلو کي د مسجدو دجوړولو حکم وکړی او دا چي مسجد پاکوئ او خوشبويه کوئ يې .
مسجد د مسلمانانو د عبادت کور دی پر هر مسلمان باندي د مسجد خدمت کول، صفايې کول او لمونځ پکښي کول لازم دي ليکن زموږ ځيني خلګ يوا ځي دلمانځه لپاره را ځي نور يې نه خدمت کوي نه يې جوړيده کوي او نه يې صفايې کوي . دا دايمان ضعف والی دی.
الله ﷻ دي ټولو مسلمانانو ته دمسجد خدمت ورنصيب کړی . آمين.

**﴿۳۲﴾ د قرانکریم فضیلت :**

﴿ اِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ اَقْوَامًا وَ يَضَعُ بِهِ آخَرِيْنَ﴾ [1]

**ترجمه** : بیشکه الله تعالی ﷻ ددغه کتاب (قرآنکریم) په ذریعه څومره قومونه پورته کوي او هم ددغه مبارك کتاب په ذریعه څومره خلګ کښته کوي .

**لغات** : يَرْفَعُ : د باب فتح څخه په معنی دپورته کولو. اَقْوَامًا : جمع دقوم په معنی دجماعت.
يَضَعُ : د باب فتح څخه په معنی دایښودل، لیکن دلته یې مطلب دمرتبې په اعتبار کښته کول دي .

**تشریح** : مطلب دحدیث مقدس دادی چې که چا د قرآنکریم په احکامو ځان خبر کړئ او عمل یې دخپل استعداد په اندازه په وکړی نو الله تعالی ﷻ یې په دنیا ا و آخرت کې مرتبه او عزت پورته کوي.
په قرآنکریم کې نبي کریم ﷺ ته خطاب دی چې ته مؤمنانو ته وفرمایه چې دالله ﷻ په فضل (قرآنکریم) او رحمت (عمل په قرآنکریم) سره او هم په دغه دوو شیانو به مؤمن خوشحاله کیږي ، ځکه دغه (که دحروفو سموالي وي که

---

[1] و عن عمر بن الخطاب قال : قال رسول الله ﷺ ان الله ..... الخ . مشکوة .

څه هم يو حرف وي يا قرائت يا تلاوت وي) بهتره دي تر هغو شيانو چي تاسي جمع کړي دي . [1] يعني يو حرف دقرآن کريم زده کول تر دنيا او تر هغه ټولو شيانو چي په دنيا کي دي بهتره دي .

په حديث شريف کي ذکر دي چي د قرآن کريم دتلاوت په وخت کي الله تعالی ﷻ د هر حرف د ويلو په بدله کي لس نيکۍ ورکوي او په لمانځه کي پر هر حرف باندي پنځه ويشت نيکۍ ورکوي مګر چي پر صحيح طريقه يې زده کړي او بيا يې ووايي ، اول بايد اودس وکړي او بيا په ګوښه ځای کي په کراره سره (که په لوړ اواز ويل بل چاته ضرر وي) په ښه غور او فکر سره به يې تلاوت کوي او که يې په معنی پوهيدی نو په معنی کي به يې غور اوفکر کوي .

**د قرآنکريم حقوق** :

اول: بايد د قرآن کريم حروف په ښه توګه په قرآئت سره هم خپله زده کړو او هم يې خپل اولاد ته ور زده کړو .

دوهم : بايد قرآن کريم په معنی زده کړل سي .

---

[1] سورة يونس آية نمبر ٥٧.

دريم : په قرآن كريم باندي بايد عمل وكړل سي .
ځلورم : قرآنكريم بايد نورو مسلمانانو ته ورسول سي .
په پورتني ځلورو كارو كښې چي په كوم كار اخته وي په قرآن كريم كي ذكر دى چي په دغه عمل به خوشحاله كيږي نور چي هر څومره مالداري لري په هغه به نه خوشحاله كيږي بلكه ستا فكر خام دى قرآن كريم يې درښيي چي دغه دخوشحالۍ شى دي په قبر او حشر كي به ددغه خوشحالۍ حال درته معلوميږي .
الله ﷻ دي ټولومسلمانانو ته د قرآنكريم سره محبت ورنصيب كړي او دقرآنكريم خدمت ،تلاوت اوعمل كولو توفيق دي ورنصيب كړي ځكه چي اصل شى عمل كول په قرآن كريم دى ، او هره ورځ دقرآنكريم تلاوت كول پكار دي او دتلاوت وروسته به دا دعاء كوي :
( اَللّٰهُمّ اجْعَلِ الْقُرْآنَ لَنَا فِي الدّنْيَا قَرِيْنًا وَ فِي الاٰخِرَةِ شَافِعًا وَ فِي الْقَبْرِ مُوْنِسًا وَ فِي الْقِيَامَةِ صَاحِبًا وَعَلَى الصِّرَاطِ نُوْرًا وَفِي الْجَنّةِ رَفِيْقًا وَ مِنَ النّارِ سِتْرًا )

**﴿۳۳﴾ د تقوا داره عالم فضیلت :**

﴿ اَلاَ اِنَّ شَرَّ الشَّرِّ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ وَ اِنَّ خَيْرَ الْخَيْرِ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ ﴾

**ترجمه** : خبردار اوسئ بیشکه په بدو خلگو کي بدترین شخص بد عالم دی او په ښو خلگو کي ښه ترین دخلگو ښه (تقوا داره) عالم دی .

**تشریح** : دعلماء کرامو موجودیت د عوامو په مینځ کي یو نمونه د دین ده که دعالم اخلاق او عادات د شریعت مقدسه موافق وي نو دده اتباع والا به هم ټوله دشریعت مقدسه موافق وي ، او ښه لاره به ورښیي او دی به یې د اصلاح کوښښ کوي . په احادیثو مقدسوو کي دباعمله عالم ډیر فضائل ذکر دي (۱)چي دعالم باعمله لپاره د مځکي او آسمانو ټوله مخلوقات د الله ﷻ څخه مغفرت غواړي ، (۲)اوبیشکه فضیلت دعالم پر عابد باندي په داسي اندازه دی لکه فضیلت چي د سپوږمۍ پر ټولو ستورو باندي دی

(۳)په یو بل حدیث کي ذکر دي چي فضیلت دعالم رباني پر عامو خلگو باندي داسي دی لکه (نبي کریم ﷺ وفرمایل) زما

فضیلت په تاسو کي پر هغه کمه درجه والا مؤمن باندي دی .[1]

حضرت امام رباني رحمة الله علیه فرمایې چي د دغسي علماؤو د مشوانۍ رنګ الله ﷻ د آخرت په ورځ د شهیدانو د وینو سره تلي او د دوئ تول به درووند وي ، او خوب ددغه تقوا داره علماؤو عبادت دی . ددغسي عالم څخه باید څوك دین زده کړي ، احکام او مسائل ځیني و پوښتي او ددغه علماؤو وجود د ټوله عالم لپاره باعث خیر دی ددغسي علماؤو احترام او تعظیم پر ټولو مؤمنانو لازم دی .

ددې خلاف هغه علماء چي تقوا نلري حضرت امام رباني رح فرمایې چي هغه علماء چي دحب دنیا او حب منصب وعزت په بد نما داغ باندي داغ سوي وي که څه هم د دوئ څخه فائدې حاصلي سي مګر دا علم د دوئ په حق کي نافع نه دی .

نن سبا چي په دین کي کمزوري پیدا ده دا ټوله ددغه علماء سوء په وجه ده ځکه چي دوئ په هر نارواه کار کي شرکت کوي لکه عکسونه،فلمونه کتل یا اخیستل یا

---

[1] مشکوة ، کتاب علم .

داسي نور اعمال ، خلگو ته بهانه پيداسي چي دغه عالم دى دغسي كوي يا خلگو ته غلطي مسائل وربنيي ، په احاديثو كي ددغه ډول علماؤو سخت رد راغلى دى چي دغه علماء فتنې په عوامو كي پيدا كوي او آخير به دوئ پخپله په دغه فتنو كي واقع او هلاك سي .

ملا علي قاري رحمه الله فرمايي : جاهل لره دي يو وار هلاكت وي او دغسي عالم لره دي اووه واره هلاكت وي .[1]

او په حديث شريف كي ذكر دي چي علماء ورثه د انبياؤو دي ليكن حضرت امام رباني شيخ احمد فاروقي رح فرمائي چي علم دوه قسمه دي يو علم اسرار او بل علم احكام ، هغه شخص چي علم اسرار (تزكيه نفس) نه لري هغه وارث د نبي نه وي ځكه چي دنبي څخه دغه دواړه علمه په وراثت كي پاته دي البته دغه عالم ته عالم بالاحكام وايي فقط .[2]

حضرت ملا علي قاري رح فرمايي چي حضرت امام مالك رح فرمايي چي كوم عالم چي صوفي نه وي (تزكيه نفس نه لري) هغه فاسق دى[3].

---

[1] مرقات ج ١ صـ ٤٣١.
[2] مكتوبات ج ١ صـ ٢٢٨.
[3] مرقات ج ١ صـ ٤٧٨.

**﴿۳۴﴾ د خلګو په خاطر د الله ﷻ نافرماني جائز نه ده:**

﴿ لاَطَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ﴾ [1]

**ترجمه** : په داسي امورو کي دمخلوق تابعداري جائز نه ده چي د الله ﷻ نافرماني راځي .

**لغات** : طَاعَةَ : طوعا ، فرمانبرداري ته وايې .

**تشريح** : د خلګو په خاطر د الله ﷻ نافرماني کول جائز نه ده مطلب يې دادی چي که انسان حاکم وي که غير حاکم چي داسي حکم صادر کړي چي دالله ﷻ دحکم مخالفت راځي نو ددغسي شخص يا حاکم حکم نه منل کيږي .

مسئله : که يو سړی بل سړی په زور په نارواه باندي مبتلا کړي نو دغه مامور ګناه کار نه دی .

حاصل : دا چي په دغه حديث شريف کي يو قانون ذکر سو چي دالله ﷻ حکم غالب دی ، انسان دي دمخلوق د داسي امر چي دالله ﷻ نافرماني پکښې راځي هيڅکله فرمانبرداري نه کوي .

تاسو ته معلومه ده چي خلګ څومره يو تر بله مراعت کوي که څه د الله ﷻ دحکم مخالفت پکښې راځي .

---

[1] عن النواس بن سمعان قال : قال رسول الله ﷺ لاطاعة ....الخ . مشکوة صـ ۳۲۱.

حضرت مولانا جلال الدين رومي رحمة الله عليه فرمايي

(بې وفا ئي دان وفا بارد حق ، بـر حقوق حق ندارد كسي سبق)

چي هغه شخص چي دنورو اتباع كوي په داسي امر كي چي د الله ﷻ نافرماني راځي دا دالله ﷻ سره بې وفايې ده .

الله ﷻ دي هر مسلمان ته په هر كار كي اول د شريعت مقدسه مراعت ور نصيب كړي .

لهذا دغير شرعي آمر مراعت به نه كوي او نه به يې اتباع كوي :

(۱) كه دحاكم له طرفه وي اتبارع نارواه ده .

(۲)كه دپلار د طرف و زوی ته داسي غير شرعي حكم وي اتباع به يې نه كوي .

(۳) كه د زوی مطالبه د پلار څخه وي غير شرعي مراعت به يې نه كوي بلكه مطالبه د اولاد به نه مني بلكه پوهوي به يې چي په دې كي د الله ﷻ ناراضګي راځي .

(۴) همدارنګه يو انډيوال به دبل انډيوال غير شرعي مطالبه نه مني . حق تعالى جل وعلا دي مسلمانانو ته هدايت دطاعت ور په نصيب كي .

**﴿۳۵﴾ ژوند یو لوی نعمت دی بې طاعاتو ضائع نسي :**

﴿ قَالَ رَسُوْل اللهِ ﷺ لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ : شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سُقْمِكَ، وَ غِنَائَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَ فَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ ﴾ [1]

**ترجمه** : جناب نبي کريم ﷺ يو سړي ته د نصيحت په ډول وفرمايل : چې پنځه شيان تر پنځو شيانو دمخه غنيمت و ګڼه : ځواني ستا تر سپين ږيرتيا دمخه ، صحت ستا تر ناجوړۍ دمخه ، مالداري ستا تر فقر اوافلاس دمخه، فراغت ستا تر اشغال دمخه، او ژوند ستا د مرګ تر مخه .

**لغات** : اِغْتَنِمْ : د باب افتعال څخه غنيمت ګڼل ، دباب سمع څخه سبقت کول .

شَبَابْ: ځواني د باب ضرب څخه ځوانيدل .

هَرَم : دباب سمع څخه ډير کمزوره کيدل .

سَقَمْ : د باب سمع څخه ناجوړه کيدل جمع يې سقام ده .

**تشريح** : صحت تر ناجوړې دمخه لوی نعمت دی ، علماء کرام فرمايي تر ايمان وروسته لوی نعمت صحت دی په ناجوړه بدن نه د دين کار کيږي نه ددنيا نو ددغه نعمت

---

[1] عن عمر بن ميمون الاردي قال : قال رسول الله ﷺ لرجل ... الخ .مشكوة ج ۲ صـ۴۴۱.

شکر دادی چي باید عبادت په وسي .

غناء د فقر ترمخه : دا هم لوی نعمت دی تهوله مالي عبادت لکه زکوة، خیرات، د دوستانو کومك ،حج، پردیني امورو خرڅ ... داټوله په مال کیږي ددې شکر دادی چي خرڅ کړل سي او دآخرت لپاره ذخیره سي داسي چي انسان فنا سي یا يې مال فنا سي او دقبر لپاره هیڅ ونه کړي .

ژوند د مرگ ترمخه : دا هم یو لوی نعمت دی ، ملا علي قاري رح فرمایې که چیري ناجوړې یا مسکیني وي مگر دی خو ذکر کولای سي دا یو آن پر دغه حال هم دالله ﷻ لوی نعمت دی . [1]

مفسرین فرمایې چي د آخرت په ورځ د انسانانو سترگي خلاصي سي مؤمنان هم حسرت کوي چي کاشکي موږ اعمال ډیر کړي واي ، او گنهکار مؤمنان وایې کاشکي موږ دداغسي عالي مقدس ذات جل جلاله نافرماني نه

وای کړې . البته مکمل اولیاء کرام ددغه حسرته خلاص وي .

الله ﷻ دي موږ اوتاسو ته د ژوند قدرداني رانصیب کړي.

عاقلات وایي : الغمة اذا فقدت عرفت : چي نعمت زائل سي بیا یې قدر معلومیږي . یعني په قبر کي بیا دژند قدرداني ورمعلومیږي .

---

[1] مرقات ج ۹ صـ ۳۷۰.

**﴿۳۶﴾ د نیوي عذابونه د مؤمن لپاره رحمت دي :**

﴿ أُمَّتِيْ هٰذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُوْمَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا، اَلْفِتَنُ وَالزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ ﴾ [1]

**ترجمه** : زما دغه امت امت مرحومه دی (یعني رحمت پر دغه امت ډير دی په سبب دنبي ﷺ چي رحمة للعالمين دی) پر دغه امت باندي په آخرت کي عذاب نسته او په دنيا کي د دوئ عذاب فتنې،زلزلې او ناحق قتلونه دی .

**لغات** : اَلْفِتَنْ : د فتنة جمعه ده مختلفي معناوي لري لکه: امتحان، گناه، عذاب، رسوايې، گمراه کول، گمراه کيدل، ناجوړي وغيره .

**تشريح** : دا چي په آخرت کي امت مرحومه لره عذاب نسته ددې څخه سخت عذاب يا دائمي عذاب مراد دی ځکه چي په ځينو احاديثو کي پر گناه کبيره باندي د عذاب ذکر دی. يعني چي په شريعت مقدسه باندي عمل ونکړي نو په دنيا کي په مختلفو آفاتو باندي اخته کيږي ددې لپاره چي گناه يې محوه سي او آخرت ته پاته نسي :من يعمل منکم سوء

---

[1] عن ابي موسی قال: قال رسول الله ﷺ امتي ..... الخ . مشکوة ج ۲ صـ ۴۶۰.

يجزيه ، آية هم پر دغه دلالت کوي ، يا يې گناه کبيره نه وي کړې نور گناه الله ﷻ په مختلفو آفاتو ورمحوه کوي په آخرت کي گناه کبيره والا اشخاصو لره عذاب سته .

حاصل دا چي په دنيا کي عذابونه او تکليفونه مؤمنانو لره رحمت دی که گناهکار وي گناه يې محوه کيږي که نيك وي مرتبه يې پورته کيږي ،په دنيوي تکاليفو باندي بايد مؤمن صبر وکړي او د ډيرو شکاياتو څخه چي خلگو ته يې کوي بايد ځان وساتي ، او دا تکاليف د الله تعالی ﷻ رحمت دي . البته دعاء کولای سي : چي الله پاك ﷻ ته دعاء وکړي چي يا الله ﷻ هدايت راکړې د دنيا ،آخرت او دقبر د تکاليفو څخه مي خلاص کړې ځکه موږ عاجزه يو دصبر طاقت نه لرو هميشه به دغه دعاوي کوو .

حضرت مولانا رومي رح فرمايي : چي عذاب مومنين لره رحمت دئ

*في المثل جورت اگر عريان شود*
*گر جهان گريان بود خندان شود .*[1]

---

[1] مثنوي ج ١ صـ ١٣٣.

﴿۳۷﴾ **د نیکو اعمالو و طرف ته وړاندي کیدل د ټولو بدبختیو څخه نجات دی** :

﴿ بَادِرُوْا بِالاَعْمَالِ فِتَنًا كَقِطْعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ ،يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَ يُمْسِيْ كَافِرًا، وَ يُمْسِيْ مُؤْمِنًا وَ يُصْبِحُ كَافِرًا، يَبِيْعُ دِيْنَهُ بِعَرِضِ الدُّنْيَا﴾ [1]

**ترجمه** : د اعمال صالحوو په کولو کي تلوار کوئ تر مخه ددې چي فتنې ظهور وکړي (داسي فتنې) لکه د تاریکي شپې د ټوټې په مثل (اثر یې دادی) انسان سهار د ایمان په حال کي راپورته کیږي او ماښام کافر وګرځي ، اوماښام مؤمن وي مګر سهار د کفر په حالت کي راپورته کیږي (او دغه رنګه) خلګ خپل دین د دنیا د لږ سامان په عوض کي خرڅوي .

**لغات** : بَادِرُواْ : باب مفاعله یوتر بله سبقت کول .
قَطْع: مفرد یې قطعة دی ټوټې ته وایې . بِعَرَض : لږ سامان .

**تشریح** : جناب نبي کریم ﷺ په دغه حدیث مقدسه کي مسلمانانو ته فرمایلي دي چي تاسو داعمال صالحوو په

---
[1] وعن ابي هريرة قال : قال رسول الله ﷺ بادروا..... الخ . مشكوة ج ۲صـ ۴۶۲.

کولو کي تلوار کوئ ځکه که چیري فتنو ظهور وکړی داسي فتنې لکه د تورې شپې حصې یعني دغه فتنې تر تورې شپې لا زیات ظلمت لري د اصلاح او فساد درك یې نه معلومېږي ، نه سبب دجنګ نه سبب دخلاصوالي معلومېږي په دغسي وخت کي مسلمانان په مختلفو تکالیفو اوتشویشاتو کي وي نه عبادت پر ښه طریقه کولای سي نو دفع ددغه فتنو کولای سي ځکه چي دده داعمالو په وجه پيښه ده .

ملاعلي قاري رح فرمايې زيات قتلونه، يا ديني اختلافات واقع سي په مابين کي دمسلمانانو ، سهار به مؤمن وي ماښام به د بدو اعمالو يا بدو خبرو په وجه کافر وي ياماښام به مؤمن وي او سهار به کافر وي خپل مقدس او باعزته دين د دنيا لپاره خرڅوي ، نو تاسي بايد په دغه وخت کي د اعمال صالحوو طرفته سبقت وکړي دخبرو څخه دکفارو او بدو اعمالو څخه ځان وساتئ .

او دا ډوله حالت نن سبا واقع دی ،الله تعالی ﷻ مسلمانانو ته اولا هدایت او بیا حفاظت ورنصیب کړي . آمین

**﴿۳۸﴾ قيامت ته نژدې به پر دين عمل کولو والا داسي په تکليف وي لکه د اور سکروټې چي يې په لاس کي وي :**

﴿ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ يَاْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ اَلصَّابِرُ فِيْهِمْ عَلٰى دِيْنِهٖ كَالْقَابِضُ عَلَى الْجَمْرِ﴾ [1]

**ترجمه** : نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي پر خلگو باندي به داسي زمانه راسي چي (په دغه زمانه کي به) پر خپل دين باندي صبر کونکی (عمل کونکی) داسي وي لکه سکروټه د اور چي يې په لاس کي اخيستې وي (يعني پر دين عمل کونکی مؤمن به په دغه اندازه په عذاب کي وي).

**لغات** : اَلْقَابِضُ: د باب ضرب څخه يوشی په لاس باندي نيول .

اَلْجَمَرْ : جمع دجمرة په معنی دسکروټي .

**تشريح** : ددې حديث مقدسه مطلب دادی چي نبي کريم ﷺ فرمايې چي په آخره زمانه کي به نارواوي داسي عامي سي چي خلگ به د دين څخه نفرت کوي د خلگو اعمال نه بلکه عقائد به هم خراب سي لکه مخکي حديث شريف کي

---

[1] عن انس قال: قال رسول الله ﷺ ياتي ...... الخ. مشكوة ج ۲ صـ ۴۵۹.

چي ذکر سول . ځوك چي د دين خبره وکړي يا پر دين باندي عمل وکړي حمايت کونکی به يې نه پيدا کيږي نو په دغه وخت کي سړی پر دين باندي ټينګ پاته سي په دغه حديث شريف کي د اور د سکروټو په لاس دنيولو سره تشبيه ورکړې ده لکه څنګه چي په لاس کي سکروټې نيول ګران کار دی همدارنګه په باطل ماحول کي دايمان او داعمالو حفاظت کول هم ډير ګران کار دی .

نو په دغسي وخت کي پر دين يا پر ديني عمل باندي (چي خلګ عمل نه پر کوي لکه ږيره وغيره) بر کرار پاته سي ، په حديث شريف کي ذکر دي چي داعمل مسنون دسلو شهيدانو ثواب لري (من تمسك بسنتي .... الخ ) اوپه يو بل حديث شريف کي ذکر چي دغه شخص د پنځوسوو نفرو دعمل کولو ثواب ورکول کيږي . حق تعالی ﷻ دي ټولو مسلمانانو ته پر اعمالو استقرار ورپه نصيب کړي.

⁂⁂⁂⁂⁂

**﴿۳۹﴾ د نبي كريم ﷺ مهم وصيتونه :**

﴿ ذَا قُمْتَ فِيْ صَلاَتِكَ فَصَلِّ صَلاَةً مُوَدِّعٍ وَلاَتُكَلِّمْ بِكَلاَمٍ تَعْذِرُ مِنْهُ غَدًا وَاَجْمِعِ الاَيَاسِ مِمَّا فِيْ اَيْدِي النَّاسِ﴾ [1]

**ترجمه** : (نبي كريم ﷺ په جواب كي دسائل و فرمايل) : كله چي ته دلمانځه لپاره ودريږې نو داسي لمونځ وكړه لكه د دنيا څخه چي رخصت كونكى والا وې او ته د ژبې څخه داسي خبره مه راباسه چي سبا (ددغه خبري كولو په وجه) عذر غواړې ، او دهغه شي څخه نااميده سه چي دخلگو په لاسو كي دي .

**لغات** : وَدَعَ : رخصت كول ،پريښودل، دخپلي زندگۍ څخه رخصت كېدل .

صَلٰوةِ مُوَدِّعٌ : د خپل ژوند اخري لمونځ . عَذَرْ : دباب ضرب څخه د الزام څخه بري كيدل .

الاياس : د باب سمع څخه په معنى د نااميده كيدل .

**تشريح** : صلوة مودع : مطلب دادى چي لمونځ بايد داسي وسي چي د الله ﷻ ماسوا ټوله مخلوق رخصت او

---

[1] عن ابي يوب الانصاري قال جاء رجل الى النبي ﷺ فقال : عظني و اوجز فقال .... الخ . مشكوة ج ۲ صـ ۴۴۵.

پرېښونکی يې يعني فکر به دي په لمانځه کي وي . دوهم مطلب يې دادی چي لمونځ بايد داسي وي چي لمونځ لره رخصت کونکی يې يعني لکه ستا د ژوند آخري لمونځ چي وي نو ددغه تصور سره بايد لمونځ په ښه خشوع اوعاجزۍ سره وسي او معلومه هم نه ده چي تر بل لمانځه پوري به ته ژوندی يې که نه . حضرت ملاعلي قاري رح فرمايې چي د ژوند آخري فرض ښه وکړه .

لاتکلم : مطلب داسي خبره يو مؤمن تر خولې نه راباسي چي د آخرت په ورځ بيا پښېماني کوي او عذر غواړي بلکه دلته پرهيز کوه .

بل مطلب يې دادی چي داسي خبره مه کوه چي سبا د خپلو دوستانو او رفيقانو څخه عذر غواړې بلکه ځان ځيني وساته .

واجمع الاياس : مطلب د اچي دهغه شيانو څخه نااميده سه کوم چي دخلگو په لاسو کي دي ، ستا په قسمت کي چي څه ليکلي وي درکول کيږي اميد هيڅ فائده نه لري ، دوهم مطلب دادی چي د نورو پر مال اوسامان باندي نظر درلودل د قلبي افلاس علامه ده د کومو خلگو زړونه چي

غني وي هغه دا افلاس نه لري .

په يو حديث شريف كي ذكر دي چي يو صحابي دنبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه : اول يو داسي شی راوښيه چي دالله ﷻ او خلگو په نزد محبوب شم نو نبي كريم ﷺ و فرمايل چي ځان وساته د هغو شيانو څخه چي دخلگو په لاسو کي دي خلگ به خپله ستا سره محبت وکړي .

⁂⁂⁂

**﴿۴۰﴾ د ذکر او ذاکر فضائل** :

﴿ قَالَ رَسُوْل اللهِ ﷺ مَثَلُ الَّذِيْ يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِيْ لاَيَذْكُرُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ﴾ [1]

**ترجمه** : نبي کريم ﷺ فرمايي : کوم شخص چي د الله ﷻ ذکر کوي او کوم شخص چي دالله ﷻ ذکر نه کوي ، د دوئ دواړو مثال د ژوندي او مړه شخص په څير دی .

**لغات** : مَاتَ: د باب نصر څخه د مرگ په معنی .

الحي: د باب افعال څخه په معنی د ژوند .

**تشريح** : په دغه حديث مقدسه کي فضيلت د ذاکر بيان سوی دی علماء محدثين فرمايي چي په دغه حديث کي د زړو د کيفيت بيان دی چي زړونه دوه قسمه دی : ذاکر زړه ژوندی دی ، او غير ذاکر زړه مړ دی (که څه هم په خوله ذکر وکړي) لکه څرنگه چي ژوندی او مړ انسان فرق لري چي مړ نه ځان ته فائده رسولای سي نه غير ته که بې دفنه پاته سي بد بويې يې ځي همدارنگه غير ذاکر چي زړه يې مړ دی د ټولو نقصاناتو مرکز دی ، که څه هم ژوندی دی په حقيقت کي مړ دی ، او ذاکر که حقيقتا مړ سي په قبر کي ژوندی دی : بل احياء عند ربهم ،

---

[1] عن ابي موسى قال: قال رسول الله ﷺ مثل ...... الخ . مشکوة ج ١ صـ١٩۶.

ذاکر په قبر، حشر او جنت کي خاص ژوند لري . علامه ابن قيم رح فرمايي : چي ذکر هغه دروازه ده چي د بنده او الله ﷻ تر ميان خلاصه ده يعني رضامندي الهي ﷻ په دغه ذکر سره ده ، شارحين فرمايي چي ذکر دوه قسمه دی : (۱) يادونه دالله ﷻ په ژبه سره لکه تسبيحات وغيره. (۲) يادونه دالله ﷻ په زړه سره ، او همدا افضل عمل دی ولي که زړه ژوندی سو حيات ابدي په پيدا کيږي [1] .

په معارف القرآن کي ذکر دي چي اصل ذکر کونکی زړه دی ژبه يې صرف ترجماني کوي .[2]

يوائي په ژبه سره ذکر کول هم ثواب لري او هم د شکر ځای دی مگر ډير اثر نه لري د زړه کمال نسي پيداکولای او دزړه صفايي نه راځي اخلاق يې نه سميږي . اخلاق حسنه ، قرب الهي ﷻ ، حيات ابدي د اتوله د زړه په ذکر سره حاصليږي چي ديو کامل استاد څخه زده سي .

مسئله : علامه ابن عابدين رح او نور فقهاء ذکر کړی دی چي د اخلاق ذميمه په اخلاق حسنه سره اړول فرض عين دی ،اوهم دغه خبره مولانا اشرف علي رح په البصائر کتاب کي او مفتي

---

[1] مظاهر حق ج ۲ صـ ۴۶۶.

[2] معارف القرآن ج ۱ صـ ۳۹۲.

محمد شفیع رح په معارف القرآن کي کړې ده او د اخلاق ذمیمه په اخلاق حسنه اړول عموما په ذکر سره کیږي چي دکامل استاذ په تربیه کي وي او هم دغه خبره علامه عبدالوهاب شعراني په خپل کتاب میزان اعتدال کي کړې ده ځکه قاضي ثناء الله رح فرمایي : چي علم باطن اوتزکیه فرض ده طریقت واجب دئ . شاه ولي الله رح فرمایي : دهغه عالم څخه دصحبت څخه فرار وکه چي دباطن تزکیه یې نه وي کړې .

نو دهر چا څخه به ذکر نه اخلي بلکه استخاره به کوي یوکامل متشریع شیخ به پیداکوي او ذکر به ځیني زده کوي.

**د ذکر فضائل** :

(۱) په حدیث شریف کي ذکر دي : تر ټولو خیراتو ،صدقاتو حتی ترجهاد ذکر (قلبي) افضل دی .

(۲) حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمایې : چي په جنت کي انسان پر هغه وخت باندي افسوس کوي کوم وخت چي یې په دنیا کي بې ذکره تیر کړی وي .

(۳) په حدیث شریف کي ذکر دي چي هر شي لره صفایې سته او صفایې د زړه په ذکر سره ده .

**د ذاکر فضائل** :

(۱) په حدیث مذکوره کي ذکر سول چي حقیقة ذاکر ژوندی دی

(۲) یو چا دنبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي کوم عمل

افضل دی ؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل چي ته د دنیا څخه په داسي حال کي رخصت سي چي ژبه دي الله ﷻ په ذکر سره لنده وي (یعني ذاکر یې) .

(۳) ذات الهي ﷻ د ملائکوو په مخ کي په ذاکرینو باندي فخر کوي .[1]

**د ذکر متعلق د حضرت امام رباني شیخ احمد فاروقي رحمه الله مبارک وینا :**

دانا واگاه باش که سعادت تو بلکه سعادت جمیع بني آدم وفاح درستگاري همه در ذکر مولاء خود است جل سلطانه تاممکن باشد جمیع اوقات را مستغرق ذکرالهي جل سلطانه باید ساخت ویك لحظه تجویز غفلت نباید کرد .

ولله سبحان الحمد والمنة ، که دوام ذکر در طریقه حضرات خواجه گان قدس الله تعالی اسرارهم در ابتداء میسر میگردد... الخ .

پس اختیار این طریقه عالیه من طالب را اولی وانسب باشد بلکه واجب ولازم ...الخ .2

---

[1] مرفات ج ۵ صـ ۵۵۵.، ج ۵ صـ ۱۵۲.

[2] مکتوبات ج ۱ صـ ۷۶.حصه سوم .مثنوي ج ۱ صـ ۶۲.

**حاصل** : حضرت اما م رحمة الله تعالی علیه فرمایې چي اګاه او باخبره اوسئ چي :

(۱) د ټوله بني آدم نیك بختي او کامیابي په ذکر کي د مولا ﷻ **خپل** ده .

(۲) تر څو چي ممکنه وي ټوله وخت باید په ذکر کي مشغوله تیر سي او یوه لحظه باید غفلت ونکړي .

(۳) چي دوام ذکر په ابتدا د طریقې د حضراتو خواجګانو قدس اسراراهم سره کیږي .

(۴) نو اختیار ددغه طریقې عالیې طالب رضاحق لره ډیر بهتره او مناسبه بلکه واجب ده .

**د حضرت مولانا جلال الدین رومي رح رایه :**

ګر تو سنګ صخره مرمر شوي چون بصاحبدل رسي ګوهر شوي
نارخنـــدان باغ راخندن کند صحبت مرادانت ازمـــردان کند
همنیشین اهل معنی بـــاش هم عطایابي وهم بـــاشي فتا
بي عنایات حق و خاصان حق ګر ملک باشد سیاهشش ورق

وما علینا الا البلغ المبین .

۱۰\۱۰\۱۴۲۹ هـ ق